

# ملي سرود

دا وطن افغانستان دی
کور د سولې کور د تورې
دا وطن د ټولو کور دی
د پښتون او هزاره وو
ورسره عرب، گوجر دي
براهوي دي، قزلباش دي
دا هیواد به تل ځلیږي
په سینه کې د آسیا به
نوم د حق مو دی رهبر

دا عزت د هر افغان دی
هر بچی یې قهرمان دی
د بلوڅو د ازبکو
د ترکمنو د تاجکو
پامیریان، نورستانیان
هم ایماق، هم پشه یان
لکه لمر پر شنه آسمان
لکه زړه وي جاویدان
وایو الله اکبر وایو الله اکبر

# د کتاب ځانګړتياوې


مضمون: پښتو

مؤلفين: د تعليمي نصاب د پښتو ژبې او ادبياتو څانګې د درسي کتابونو مؤلفين

اېډيټ کوونکي: د پښتو ژبې د اډيټ ډيپارټمنټ غړي

ټولګی: لسم

د متن ژبه: پښتو

انکشاف ورکوونکی: د تعليمي نصاب د پراختيا او درسي کتابونو د تألیف لوی رياست

خپروونکی: د پوهنې وزارت د اړيکو او عامه پوهاوي رياست

د چاپ کال: ۱۳۹۸ هجري شمسي

د چاپ ځای:

چاپخونه:

برېښناليک پته: curriculum@moe.gov.af

## د پوهنې د وزیر پیغام

اقرأ باسم ربک

د لوی او ښښونکي خدای ﷻ شکر په ځای کوو، چې موږ ته یې ژوند رابښلی، او د لوست او لیک له نعمت څخه یې برخمن کړي یو، او د الله تعالی پر وروستي پیغمبر محمد مصطفی ﷺ چې الهي لومړنی پیغام ورته (لوستل) و، درود وایو.

څرنګه چې ټولو ته ښکاره ده ۱۳۹۷ هجري لمریز کال د پوهنې د کال په نامه ونومول شو، له دې امله به د ګران هېواد ښوونیز نظام، د ژورو بدلونونو شاهد وي. ښوونکی، زده‌کوونکی، کتاب، ښوونځی، اداره او د والدینو شوراګانې د هېواد د پوهنیز نظام شپږګوني بنسټیز عناصر بلل کیږي، چې د هېواد د ښوونې او روزنې په پراختیا او پرمختیا کې مهم رول لري. په داسې مهم وخت کې د افغانستان د پوهنې وزارت د مشرتابه مقام، د هېواد په ښوونیز نظام کې د ودې او پراختیا په لور بنسټیزو بدلونونو ته ژمن دی.

له همدې امله د ښوونیز نصاب اصلاح او پراختیا، د پوهنې وزارت له مهمو لومړیتوبونو څخه دي. همدارنګه په ښوونځیو، مدرسو او ټولو دولتي او خصوصي ښوونیزو تأسیساتو کې، د درسي کتابونو محتوا، کیفیت او توزیع ته پاملرنه د پوهنې وزارت د چارو په سر کې ځای لري. موږ په دې باور یو، چې د باکیفیته درسي کتابونو له شتون پرته، د ښوونې او روزنې اساسي اهدافو ته رسېدلی نشو.

پورتنیو موخو ته د رسېدو او د اغېزناک ښوونیز نظام د رامنځته کولو لپاره، د راتلونکي نسل د روزونکو په توګه، د هېواد له ټولو زړه سواندو ښوونکو، استادانو او مسلکي مدیرانو څخه په درناوي هیله کوم، چې د هېواد بچیانو ته دې د درسي کتابونو په تدریس، او د محتوا په لېږدولو کې، هیڅ ډول هڅه او هاند ونه سپموي، او د یوه فعال او په دیني، ملي او انتقادي تفکر سمبال نسل په روزنه کې، زیار او کوښښ وکړي. هره ورځ د ژمنې په نوي کولو او د مسؤولیت په درک سره، په دې نیت لوست پیل کړي، چې د نن ورځې ګران زده‌کوونکي به سبا د یوه پرمختللي افغانستان معماران، او د ټولنې متمدن او ګټور اوسېدونکي وي.

همدا راز له خوږو زده کوونکو څخه، چې د هېواد ارزښتناکه پانګه ده، غوښتنه لرم، څو له هر فرصت څخه ګټه پورته کړي، او د زده کړې په پروسه کې د ځیرکو او فعالو ګډونوالو په توګه، او ښوونکو ته په درناوي سره، له تدریس څخه ښه او اغېزناکه استفاده وکړي.

په پای کې د ښوونې او روزنې له ټولو پوهانو او د ښوونیز نصاب له مسلکي همکارانو څخه، چې د دې کتاب په لیکلو او چمتو کولو کې یې نه ستړې کېدونکې هلې ځلې کړې دي، مننه کوم، او د لوی خدای ﷻ له دربار څخه دوی ته په دې سپیڅلې او انسان جوړوونکې هڅې کې بریا غواړم.

د معیاري او پرمختللي ښوونیز نظام او د داسې ودان افغانستان په هیله چې وګړي یې خپلواک، پوه او سوکاله وي.

د پوهنې وزیر

دکتور محمد میرویس بلخي

# فهرست

# دعا

مور، مسلمانان د هر کار پیل د بسم الله په ویلو کوو، ځکه چې د بسم الله په ویلو سره په هر کار کې برکت پیدا کېږي او د کار پای په ښه شان سرته رسېږي. یا د خدای ﷻ نوم یادوو او یا د کار پیل په دعا سره کوو. د پښتو ژبې پخواني دیوانونه په حمد پیلېږي. حمد د خدای ﷻ ثنا او ستاینه ده او تل په نظم کې وي. ځینې کتابونه په مناجات هم پیلېږي. مناجات هم دعا ده چې له خدای ﷻ څخه غوښتل کېږي، کېدای شي چې په نظم کې وي او یا په نثر کې. په پښتو ادب کې د مناجات خورا په زړه پورې نمونه په نظم کې د بیټ نیکه ده چې په تېرو ټولگیو کې مو لوستلې ده. مور، تل خدای ﷻ ته په زارۍ او دعا یو او له خدای ﷻ نه راز، راز غوښتنې لرو. تاسې په تېر ټولگي کې د پښتو کتاب د یونس خیبري په حمد پیل کړی و. د دې ټولگي د کتاب پیل د نومیالي شاعر گل پاچا الفت په دعا سره کوو، چې خدای ﷻ زمور، په زده کړه کې خیر او برکت واچوي.

- د حمد او مناجات ترمنځ څه توپیر دی؟
- مور، ولې د کار په پیل کې دعا کوو؟

د ټول جهان واکداره! ته هر څه لرې او هر څه کوی شې. د هر چا امید تاته کېږي او هر څوک هر څه له تا غواړي. ستا خزانې او کارخانې ډکې دي. ستا په باغونو کې د شیدو او عسلو ویالې بهېږي.

ستا بخششونه او انعامونه بې پایانه دي. ستا د رحمت نور په ځمکو او آسمانونو کې نه ځایېږي.

فقیران او مسکینان درنه د ډوډۍ سوال کوي.

ماړه او بډایان درنه اشتها او د هضمولو قوت غواړي.

څوک درنه په زاریو او دعاګانو اولادونه غواړي. ځینې وایي چې مال او دولت راکړه!

یو وایي چې جنت مې په کار دی. بل وایي له دوزخه امان او پناه غواړم.

مرتبې او لوړې درجې له تا سره دي، کامیابي او موفقیت ستا په توفیق حاصلېږي. دین او دنیا ستا په لاس کې دي.

راحت، زحمت، عزت او ذلت ستا له خوا انسان ته رسي.

بهار او خزان ته راولې، مرګ و ژوند ستا په اختیار کې دی.

هر څه ته کوې او هر څه له تا غوښتل کېږي.

ددې جهان او د هغه جهان اجرونه، خیرونه، خوندونه او خوشحالۍ خلکو ته، ته ورکوې. زه پوهېږم چې تا سره هر څه شته.

مګر زه هر څه نه غواړم. زما دعا او د زاهدانو دعا، زما ارزو او د پادشاهانو ارزو یو راز نه ده.

زما سوال د بډایانو او مسکینانو له سواله ډېر توپیر لري.

زه نه وایم چې ځمکې او پیسې راکړه. نه غواړم چې عزت مې ډېر لوړ او رتبه مې لوړه شي، موټرونه او اسونه مې نه دي په کار.

قصرونه او عمارتونه نورو ته ورکړه!

پټې او باغونه هغه چاته وبخښه چې په خاورو نه مړېږي.

په بانکونو کې د سوداګرو پیسې زیاتې کړه.

د بزرګۍ اعتبار مه راکوه! ځکه چې ستا په طاعت او عبادت له خلکو نه اجر او عزت غوښتل راته ښه نه ښکاره کېږي.

زه له دې ټولو نه تېر یم او نور څه غواړم.
زه هغه څه غواړم چې ته يې هم غواړې.
هو، زه ستا له رضا نه خلاف څه نه غواړم.
زه وایم په جهان کې د ظلم بیرغ نسکور کړه. حق او عدالت ته قوت ورکړه! په زړونو کې رحم او د خیر مینه واچوه!
په دماغونو کې د حق نور او د حقیقت رڼا پیدا کړه! ته کولای شې چې د ظلم قوت په ورو، ورو کاڼو میده، میده او ذرې، ذرې کړې یا د هوا په ماشو ظالمان تباه کړې.
مګر موږ د اتوم په بمونو هم دا کار نشو کولای.

د لیکوال لنډه پېژندګلوي:
ګل پاچا الفت د میر سید پاچا زوی او د سید فقیر پاچا لمسی دی. د لغمان په عزیز خان کڅ کې په (۱۲۸۸ هـ ش، ۱۹۰۹م) کال کې زېږېدلی دی. د ننګرهار او کابل په مدرسو کې يې زده کړې کړي دي او رسمي ماموریت يې د انیس د ورځپاڼې په اداره کې پیل کړی و. الفت د رسمي دندو په بهیر کې په لوړو څوکیو کارونه کړي دي او دوه دورې په پارلمان (ولسي جرګه) کې د خلکو د استازي په توګه هم پاتې شوی دی. ګل پاچا الفت د پښتو ژبې له پنځو ستورو څخه دی چې پښتو ژبې او ادب ته يې زیات خدمتونه کړي دي. ډېر کتابونه يې لیکلي دي چې مشهور يې دادي: غوره شعرونه، غوره نثرونه، لیکوالي (املا او انشا) ادبي بحثونه، څه لیکل یا لیک پوهه او نور...
ګل پاچا الفت په نظم او نثر دواړو کې د پوره صلاحیت خاوند و، چې غوره اشعار يې د شعرونو ټولګه او غوره نثرونه يې د معاصرو ادبي نثرونو په زړه پورې مجموعه ده.
ګل پاچا الفت په ۱۳۵۶ل کال د قوس په ۲۸مه نېټه له دې نړۍ څخه سترګې پټې کړې.

د متن لنډیز:

په دې دعا کې له خدایه غوښتل شوي دي چې په نړۍ کې دې ظالم نه وي، ظلم او تېری دې نه وي. دا تر ټولو غوره دعا ده، ځکه چې د ټول انسانیت خلاصون پکې نغښتی دی. کله چې ظالم او ظلم نه وي نو محکوم او مظلوم به هم نه وي. برابري، عدل او مساوات به وي او دا هغه څه دي چې د اسلام مبارك دین یې غواړي او د خدای ﷻ رضا هم په دې کې ده. موږ هم باید تل له خپل خدای ﷻ څخه د خیر دعا وغواړو چې په هغه کې د ټولو انسانانو خیر وي.

موږ باید خود غرضه او خودبین نه اوسو چې هر څه د ځان لپاره وغواړو، بلکې خپله هوساینه د نورو په هوساینې کې ولټوو.

هغه څه چې د ځان لپاره یې غواړو د نورو لپاره یې هم باید وغواړو. د اسلام مقدس دین موږ عدل، ورورۍ او برابرۍ ته رابولي نو باید موږ هم په خپلو کړو وړو کې دغه اصل په پام کې ونیسو. چاته ازار ونه رسوو. د چا په حق سترګې پټې نه کړو او په ورورۍ، سوله او امن کې ژوند وکړو.



## فعالیتونه

١ــ زده کوونکي دې له ښوونکي څخه وروسته په وار سره متن په لوړ آواز ولولي او لاندې پوښتنو ته دې ځوابونه ووایي:

- د حمد او مناجات ترمنځ څه توپیر دی؟
- د دعا او مناجات ترمنځ څه توپیر دی؟
- مناجات په نظم کې وي که په نثر کې؟
- ولې د هر کار پیل په دعا سره کوو؟

۲ــ زده کوونکي دې په وار سره د متن لنډيز په خپلو خبرو کې ټولګيوالو ته وړاندې کړي.
۳ــ زده کوونکي دې په خپله خوښه په ځو کرښو کې يوه دعائيه وليکي او په ټولګي کې دې يې واوروي.
٤ــ زده کوونکي دې متن په غور ولولي او په متن کې دې شخصي ضميرونه، ملکي ضميرونه او استفهامي ضميرونه په نښه کړي.

شخصي ضميرونه: د لومړي شخص، دويم شخص او دريم شخص لپاره کارول کېږي. په دوه ډوله دی، منفصل او متصل.
منفصل ضميرونه: هغه دي چې مستقل وي او له بلې کلمې سره پيوست نه وي.
لکه: زه، ته، دی، موږ، تاسې، دوی.
متصل ضميرونه: هغه دي چې په خپلواک ډول نه کارول کېږي له نورو نومونو سره يوځای وي لکه: مې، مو، يې، دې.
ملکي ضميرونه: چې يو ځيز په چا پورې اړوند بولي، لکه: زما، ستا...
استفهامي ضميرونه: د پوښتنې لپاره کارول کېږي، لکه: څوك، چا.

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې په کور کې دغه دعائيه شعر په غور ولولي او مفهوم دې په خپلو کتابچو کې وليکي، په بله ورځ دې په پښتو درسي ساعت کې واوروي:

کــه هــر څــو يــم لــه عــمـلـه بــېـنـوا
ربــه تــه مــې د امــيــد غـونـچـه کــړې وا
مــا لــه قـهـره پـه امــان کــړې ذوالـجـلالـه
يــا جــمــالــه رحــم تــه وکـــړې پــر مــا

پـر نېـکـی بـانـدې قـوت راکــړې قــادره!
لــه بــدی مــې پــه امــان لــرې مــولا
و نېکی تـه مـې مـحـتـاج نـه یـې خـاونـده
نــه زمــا پــه بــدعــتــو لــرې پــروا
ستـا لـه واړو مـنـاهـیـو نـجـات راکـړې
پــر مــا امــر کــړې قــایــم تــر ابــدا
هر عادت مې پر طاعت باندې حساب کړې
کـه صحيح چـېـرې لـه مـا نـه سـې ادا
د شـیـطـان لـه بـده مـکـره نـجات راکـړې
هـم د نـفـس لـه وسـوسـې او لـه هـوا
پـه یـقـیـن کـې مـې لـرې بــاور لـه مخه
مــا لــه مــلــکــه د گـمــان لــرې جــدا
مـا تـوانـگـر د قـنـاعـت پـه خـزانـه کـړې
چـې مـې نـه وي وسـوسـه د دې دنـیـا
امـیـد ډېـر لـرم بـاري سـتـا و کـرم تـه
چـې غـالـبـه مـې پـر خـوف بـانـدې رجـا
ستا دیـدار بـه روزي زمـا ((جـمـعـه)) کړې
پـه نـصـیـب، مـې شـفـاعـت کـړې د پېشوا

حاجي جمعه بارکزی

حاجي جمعه بارکزی د پښتو ژبې شاعر و چې له ۱۲۰۰ هـ. ق. نه تر ۱۲۵۹ هـ. ق. پورې یې ژوند کړی دی. دی د کندهار په زاړه ماشور کلي کې اوسېده او د سردار کندل خان معاصر و. د خپل وخت عالم او صوفي شاعر و. د نقشبندیه طریقې پیرو و. څو ځلې حج ته په پښو تللی و. د ده په شعرونو کې د کندل خان د حکومت گډوډیو او ظلمونو ته اشاره شوې ده او هم یې د پښتنو غازیانو هغه حملې یادې کړې چې د انګرېزانو پر خلاف یې کړې دي. دیوان یې د افغانستان د علومو اکاډمی له خوا په ۱۳۶۰ هـ. ش. کال چاپ شوی دی.



# نعت

نعت هغه موزون کلام دی چې د اسلام د ستر پیغمبر محمدﷺ ستاینه پکې شوې وي. په نعت کې معمولاً شاعر د حضرت محمدﷺ د سیرت ستاینه کوي او د دې په څنگ کې ورسره د خپلې مینې اظهار کوي. په پښتو شعر کې له لرغونو زمانو څخه تر کلاسیکې شاعرۍ او نننۍ شعر پورې دا لړۍ راروانه ده.

د پښتو شعر په زیاترو دیوانونو کې له حمد څخه وروسته د اسلام د ستر لاربنود حضرت محمدﷺ په اړه نعت ویل شوی دی.

کله کله دا ستاینه په نثر کې هم وي خو بېلگې یې په نظم کې زیاتې دي. په پښتو کې حمدونه او نعتونه په جلا جلا مجموعو کې هم راټول او خپاره شوي دي. په دې لوست کې مو د کلاسیکې دورې د یوه شاعر خواجه محمد بنگښ یو نعت غوره کړی دی.

نعت څه ته وایي او موضوع یې څه وي؟

ستاسې کوم نعت په یاد دی چې بیتونه یې په ټولگي کې نورو ته واوروئ؟

محمده ستا و لور ته به سفر کړم
په لېمو به در روان شپه به په سر کړم
رنگينه جامې به واغوندم حبيبه!
ځان به ستا د بورجلونو قلندر کړم
زه که ستا تر مبارکې روضې ورشم
په بڼو به دې جارو خاورې د در کړم
سعادت د دواړو کونو زما دادی
چې په خاورو، دې روښان دواړه بصر کړم
پيشکشي مې د عمل په مخکې نشته
شرمنده به در حاضر دا خپل بشر کړم
جگې جگې نوراني جمال ځرگند کړه
د غفلت توره تياره شوه چې نظر کړم
ته نظر د عنايت رابانـدې وکړه
بېهوده مينې هر گور سره اوتر کړم
زه خواجه محمد هر گوره گنهگار يم
ډېر اميد له شفاعته د سرور کړم

د شاعر لنډه پېژندګلوي:

خواجه محمد بنګښ د پښتو ادبیاتو د منځنۍ دورې شاعر دی. د مغلي پاچا اورنګزیب د پاچاهۍ په وخت کې یې ژوند کاوه. د خوشحال خان خټک معاصر او د پښتنو د بنګښو قبیلې ته منسوب دی. په بنګښو شاعرانو کې لومړنی د دیوان خاوند شاعر دی. دیوان یې په پېښور کې چاپ شوی دی. خواجه محمد بنګښ په پېښور کې ژوند کاوه او د تصوف په سلسله کې د چشتیه طریقې پیرو و. دی د شیخ عبدالرحیم مرید و.

د ده په اړه پوره معلومات نشته. د زېږېدنې او مړینې نېټه یې معلومه نه ده. قبر یې هم معلوم نه دی. شعرونه یې عشقي، عرفاني او اخلاقي مضامین لري. خواجه محمد بنګښ د خپلو یارانو په مړینه ډېرې ښې مرثیې لیکلي، خو د ده مرثیه چا نه ده لیکلې.

د پښتو ژبې یو شاعر بیدل یې د یوه نکته دان شاعر په توګه یادوي. خواجه محمد بنګښ په خپل یوه شعر کې د اورنګزېب د پاچاهۍ وخت ته داسې اشاره کوي:

د اورنګ په پادشاهۍ کې مې نیاو نه شي
زه خواجه محمد به ووځم بل لور ته

د متن لنډیز

نعت هغه موزون کلام دی چې د اسلام د ستر پیغمبر حضرت محمدﷺ ستاینه پکې راغلې وي. پښتو دیوانونه په حمد پیلېږي او وروسته نعت راځي چې په نعت کې د حضرت محمدﷺ د سیرت ستاینه کوي. خواجه محمد بنګښ چې د کلاسیکې دورې شاعر دی په دغه نعت کې یې د حضرت محمدﷺ مزار ته د ورتلو ارمان کړی او د خپلو ګناهونو د شفاعت هیله ترینه لري، شاعر خپله نېکمرغي داګڼي چې د ده تر مزاره ورشي او د عنایت نظر ورباندې وشي. په پښتو پخوانیو او اوسنیو شعرونو کې د نعتونو نمونې زیاتې دي چې شمېر یې سلګونو ته رسېږي. ځینې نعتیه مجموعې هم په معاصره دوره کې خپرې شوي دي چې یو شمېر نعتونه یې راټول کړي دي. ځینې داسې پښتانه شاعران هم شته چې د نعتونو مستقلې مجموعې لري.



## فعالیتونه

۱ــ زده کوونکي دې له ښوونکي وروسته په وار سره متن په لوړ آواز ولولي. ښوونکی دې د زده کوونکو سم ویل وڅاري.

۲ــ څو تنه زده کوونکي دې په وار سره د نعت یو، یو بیت معنا کړي او نور زده کونکي دې د نعت سم ویل او سمه معنا کول وڅاري.

۳ــ زده کوونکي دې لاندیني لغتونه معنا او په مناسبو جملو کې وکاروي:

حبیب، بورجل، قلندر، روضه، سعادت، بصر، جګې جګې، جمال، عنایت، اوتر، شفاعت، سرور.

٤ــ زده کوونکي دې لاندې پوښتنې ځواب کړي:

- د پورته نعت ویونکی څوك او د چا معاصر و؟
- د کوم پاچا په وخت کې یې ژوند کاوه؟
- د دې شاعر د شعرونو موضوعات څه دي؟

٥ــ د لاندې بیتونو مفهوم په وار سره په شفاهي توګه ووایاست:

پیشکشي مې د عمل په مخکې نشته
شرمنده به در حاضر دا خپل بشر کړم
جګې جګې نوراني جمال څرګند کړه
د غفلت توره تیاره شوه چې نظر کړم

٦ــ زده کوونکي دې په شعر کې نومځري (ضمیرونه) په نښه کړي او ودې وایي چې کوم نومځري دي؟



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې په کور کې د اسلام د ستر پیغمبر محمد ﷺ په اړه په یو مخ کې لیکنه وکړي او په بله ورځ دې خپله لیکنه په پښتو درسي ساعت کې واوروي.

# ســوله



جګړه او سوله د انسانانو له ژوند سره سمه راروانه ده. سوله د جګړې ضد کلمه ده. په جګړه کې انسان وژنه، بربادي او ناخوالې وي.

ټولنیز ژوند له ګډوډیو سره مخامخ کېږي. په سوله کې آرامي، خواخوږي، سوکالي او امن وي. سوله ټولنیز ژوند تنظیموي او د جګړې ناخوالې له منځه وړي. جګړه د تباهۍ او بربادۍ نوم دی او سوله د آرامۍ او ودانۍ ضمانت کوي. جګړه نه ګټه لري او نه ګټل، سوله نه ماته لري او نه بایلل. په دې لوست کې به تاسې د سولې د ارزښت او ګټو په اړه ولولئ چې ژوند پرته له سولې څومره ستونزمن او له کړاو نه ډک دی.

ـ که سوله نه وي نو ژوند به له کومو ستونزو سره مخامخ وي؟

ـ په سوله کې د انسانانو د ژوند کوم حقونه خوندي دي؟

سوله د صلحې په بڼه یوه عربي کلمه ده چې ډېرې معناوې لري، خو یوه معنا یې چې ډېره کارول کېږي هغه د جنګ جګړې بندول دي.

سوله د جنګ بندول، د شخړو لرې کول او د اختلافاتو ختمول دي. یا سوله هغه ټړون دی چې جنګ او شخړې پرې ختمېږي. که په کوم ځای کې سوله نه وي، نو هلته خلک یو له بل سره په جګړه اخته وي. د ژوندانه ټول ورځني کارونه نه شي کولای او خلک دې ته اړ کېږي چې لرې ځایونو ته مهاجر شي او ژوند په سختۍ تېر کړي. په جګړه کې خلک وژل کېږي. میندې او پلرونه بې اولاده کېږي، ماشومان بې پلاره او بې موره کېږي.

په جګړه کې خلک د ټوپک په ژبه غږېږي او په ځمکو کې د غنمو پر ځای ماینونه او بمونه کري. په ماینونو زرګونه خلک وژل کېږي او ځینې خپل لاسونه، سترګې او پښې پکې له لاسه ورکوي. ماینونه د خلکو ژوند اخلي او هېواد ورانوي. که سوله نه وي، خلک خپه او ژوند په سختۍ تېرېږي.

په انساني ټولنه کې ډول ډول خلک دي. انسانان کله یو له بل سره جوړېږي او کله نه جوړېږي. نارینه، ښځې، ځوانان او سپین ږیري د هر څه په اړه بېل بېل نظرونه لري. دا څه بد کار نه دی. که موږ په کومه خبره له چا سره نه جوړېږو، کومه ګناه نه ده، خو که له یو بل سره خبرې وکړو، نو څرګندېږي چې کومه خبره د ټولو په ګټه ده. که څوک زموږ خبره نه مني موږ حق نه لرو چې هغه مجبوره کړو چې باید حتماً زموږ خبره ومني. موږ باید دا زده کړو چې خبرې په دلیل سره وکړو او منطقي وغږېږو. که چېرې څوک د ټوپک په زور مجبور کړو چې زموږ خبره ومني، نو هغه به له موږ نه ډار شوی وي. په زړه کې به یې زموږ خبره نه وي منلې او له موږ نه به کرکه هم کوي.

موږ باید په دې وپوهېږو چې خلک ډول، ډول دي. د یو لاس ګوتې هم برابرې نه دي. یو تور، بل سپین، څوک جګ، څوک ټیټ، څوک چاغ او څوک ډنګر دی. یو په یوه ژبه خبرې کوي او بل په بله ژبه. سره له دې چې یو له بله توپیر لرو، خو د ځان او خپلو کورنیو لپاره هغه څه غواړو چې ټول یې غواړي. خواړه، د ښښلو اوبه، د اوسېدو ځای او د ژوند د چلولو لپاره کار.

موږ ټول دا هیله لرو چې زموږ اولادونه روغ، غښتلي او کورنۍ مو خوشحاله وي. دې هیلې ته د رسېدو لپاره موږ باید په سوله او آرامۍ کې ژوند وکړو.

په دې نړۍ کې چې موږ ژوند کوو، نو خلک ډول ډول دي او باید چې همداسې وي، ځکه که ټول خلک یو ډول وای دا دنیا به پیکه او بې خونده وای. د همدې لپاره د یوه سړي څېره بل ته ورته نه ده. یو سړی یو کار ښه کولای شي او بل سړی بل کار. یو دهقان دی او بل ختګر. څوک د اوسپنې کار کوي او څوک د وړیو او وریښمو کار، یو سوداګري کوي او بل دوکانداري، یو مستري دی او بل ترکاڼ. موږ په خپل ورځني ژوند کې دې ټولو کسانو ته اړ یو. که څوک موږ ته ورته نه دی، یا یې جامې زموږ غوندې نه دي او یا یې غړېدا بل ډول ده، د دې معنا دا نه ده چې هغه له موږ نه ښه او یا بد دی. څه پروا کوي که موږ یو له بله توپیر لرو؟ که څوک یو کار زموږ په څېر نه کوي، موږ یې باید بد ونه ګڼو. موږ یې له نورو زده کوو، نو نور خلک کولای شي چې له موږ نه یې زده کړي. که موږ یو بل ته درناوی ونه کړو او یو له بل سره ناسته ولاړه او خبرې ونه کړو، نو سوله به نه وي.

د انسانانو ترمنځ توپیرونه اختلافات رامنځته کوي، خو د اختلافاتو پالل اختلافات زېږوي. دا باید په یاد ولرو چې د اختلافاتو د حل ډېرې لارې شته. کله چې ماشومان په خپل منځ کې جنجال کوي نو مور او پلار یې ورسره خبرې کوي او جوړوي یې. کله چې د ګاونډیانو ترمنځ ستونزې پیدا شي، جرګه یا شورا ورسره مرسته کوي چې یو له بل سره روغه وکړي. کله کله بیا خلک د خپلو ستونزو د حل په خاطر قاضي، وکیل او محکمې ته ورځي. که هېوادونه یو له بل سره شخړه ولري، پخپلو منځو کې کښېني او د حل یوه لاره پیدا کوي. که په دې هم جوړ نه شي، نو د ملګرو ملتونو له موسسې څخه مرسته غواړي، لنډه دا چې د اختلاف د حل لپاره ډېرې لارې شته. موږ باید خپل اختلاف د خبرو او جرګو له لارې حل کړو، نه د زور له لارې. زور بدمرغي راولي، زور اختلاف نه حل کوي، بلکې اختلاف زیاتوي.

نو لازمه ده چې موږ خلک سولې ته راوبلو او ورته وښیو چې د جګړې پر ځای سولې

ته غاړه کېږدي.

د یونسکو کړنلاره په دې جملې پیلېږي: (څرنګه چې جګړه د انسانانو له ذهن څخه پیلېږي، نو د سولې د دفاع سنګر هم باید د انسانانو په ذهن کې رامنځته شي.)

په پښتو لیکني (تحریري) او نالیکني (شفاهي) ادبیاتو کې هم په سوله او امن ټینګار شوی دی او تل یې خلک سولې او امن ته رابللي دي. د پښتو په شفاهي ادبیاتو کې لکه لنډۍ او ځینې نورو ډولونو کې، دغه موضوع ډېره ښه انځور شوې ده. په زیاتو لنډیو کې جنګ غندل شوی او ناوړه پایلې یې په ګوته شوي دي، لکه:

د ښـــو ټـوپـکـــو وســـتــاکـــاره

د ښو ځوانانو خون به ستا په غاړه وینه

همدارنګه په پښتو شعر کې هم له لرغونو زمانو څخه رانیولې تر ننه پورې سوله او امن ستایل شوی، جنګ یې غندلی او سولې ته یې خلک رابللي دي.

د منځنۍ دورې یو شاعر ملا جانان فدوي هوتک جګړه مارو ته د سولې په هکله داسې وایي:

عـــارفـــان کـــا لـــه جـــهـــانـــه ســـره ســولـــه

تـــا تـــړلـــی پـــه جـــهـــان د ســـولـــې ور دی

همدارنګه د پښتو ژبې پخوانیو او اوسنیو شاعرانو هېڅکله سوله له پامه نه ده غورځولې او جنګ یې غندلی دی.

رحمان بابا په دې لاندې شعر کې په ښکلي ډول خلک سولې ته رابللي دي:

کـر د ګلـو کړه چې سـیمه دې ګلزار شـي
اغزي مه کره په پښو کې به دې خار شي

کوهـی مـه کنـه د بـل سـړي پـه لار کې
چېرې ستا به د کوهي په غـاړه لار شي

آدم زاد پـه معنـا واړه یـو صـورت دی
هـر چـې بـل آزاروي هـغـه آزار شي

هغـه زړه بـه لـه توپانـه پـه امـان وي
چې کښتۍ غوندې د خلکو باربردار شي

په معاصره شاعري کې سوله له هرې دورې څخه زياته راغلې ده او ولسونه يې د سولې په ساتلو مکلف ګڼلي او د جګړې تباهي او بربادي يې يو په يو بيان کړې ده. په معاصر شعر کې مو دلته دوه نمونې غوره کړې دي چې تاسې به يې ولولئ

مينه کر دی په وطن کې د ګلونو
مينه ژوند او سعادت دی د قامونو

د ژوندون ترخه په مينه خواږه کېږي
ورکوي مينه خواري د ولسونو

کوم قامونه چې په مينه سره ژوند کړي
تل وي خلاص د زمانې له افتونو

مينه مينه ده چې جوړ پرې دا جهان دی
مينه اصل د وجود او د انسان دی

ارسلان سليمي

چې خپل کور ودانوم زه
د بل کور نه ورانوم زه

نه مې چا سره بدي شته
نه مې چاته بدنيتي شته

له هر چا مې ورورولي ده
خپل پردي سره اشتي ده

زه هر چا له ښه غوارم
زه چې ځان له ره څه غوارم

دوست محمد کامل مومند

د متن لنډيز:

سوله د جګړې بندول دي. سوله د جګړې ضد کلمه ده، په جګړه کې وژنه، ورانول او له تباهۍ او بربادۍ نور څه نشته. په سوله کې آرامي، ورورولي، مهرباني، سوکالي او ترقي ده.

انسانان په خپلو منځو کې توپيرونه لري او هر سړی د خپل استعداد او توان سره يو کار کوي. ځکه چې موږ يو د بل کار ته اړ يو. د انسانانو ترمنځ اختلافات هم شته خو دا اختلافات د خبرو اترو له لارې بايد حل شي. هېڅوک حق نه لري چې په چا باندې په زور يوه خبره ومني.

که اختلافات شديد شي، نو د حل لپاره يې سپين ږيري، جرګې، محلي شوراګانې شته. له دې سره قاضي، وکيل او محکمې هم شته چې شخړې حلوي.

د هېوادونو ترمنځ که اختلافات پيدا کېږي نو ملګري ملتونه يې حلوي. هر دول

اختلافات د خبرو او مذاکرې له لارې حل کېدای شي، نو لازمه نه ده چې د جګړې لاره ونیول شي او سوله له منځه لاړه شي.
موږ ټولو ته لازمه ده چې د سولې د دفاع او ساتنې فکر د انسانانو په ذهنونو کې وروزو، ځکه چې جګړه هم له همدغه ځای څخه پیلېږي.



## فعالیتونه

۱ـ زده کوونکي دې د ښوونکي له لوستلو څخه وروسته د متن یو، یو پراګراف ولولي او مفهوم دې څرګند کړي.

۲ـ زده کوونکي دې په دوه پراګرافونو کې د جګړې زیانونه او د سولې ګټې ولیکي او په وار سره دې په ټولګي کې واوروي.

۳ـ زده کوونکي دې په وار سره په لاندې موضوع باندې خبرې وکړي او خپل خپل نظر دې څرګند کړي (څنګه کولی شو د خلکو په ذهنونو کې د سولې ساتنې اصل وروزو.)

٤ـ (خلک ډول ډول دي) زده کوونکي دې ووايي چې دا جمله څه معنا لري. د ټولنې په ګټه ده که په تاوان؟

۵ـ دوه زده کوونکي دې د نورو په استازیتوب په وار سره په دې خبرې وکړي چې څنګه کولای شو اختلافات حل کړو؟

٦ـ زده کوونکي دې په دې خبرې وکړي چې ښځې د سولې په راوستو کې څه رول لوبولای شي؟



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې په کورونو کې متن په غور سره ولولي او بیا دې د دې متن په رڼا کې د سولې په هکله یوه لیکنه وکړي. بله ورځ دې په پښتو درسي ساعت کې د نورو ټولګیوالو په وړاندې ولولي.

# ادب څه ته وايي؟




موږ په ښوونځي کې او هم له ښوونځي څخه د باندې ځینې کلمې اورو او یا یې په کتابونو او مجلو کې لولو، خو په اړه یې دومره معلومات نه لرو چې وریاندې ویوهېږو، د بېلګې په توګه ادب، ادبیات، ادبپوهنه، کره کتنه، ادبي تاریخ، ادبي ژانر او داسې نورې کلمې یا اصطلاحات چې په ادب یا ادبیاتو پورې اړه لري، خو ځینې به یې له معنا او تعریف سره لازمه آشنایي نه لري. د دې لپاره مو په دې لوست کې په ادب خبرې کړې او د ادب ځینې څانګې مو درته په لنډه توګه روښانه کړې دي چې د ادب هره څانګه په لنډ ډول وپېژنئ.

- ادب څه ته وايي؟
- شعر او داستان هم د ادب برخې دي؟

پخوانیو د آدب د کلمې په هکله ویل چې د ادب کلمه له (هذب) څخه اخیستل شوې چې (هذب) د بې عیبه معنا لري. د (هذب) کلمه به د هغې ونې لپاره استعمالېده چې څانگې او ښاخونه به یې پرې شول او صافه به شوه.

وروسته بیا دا کلمه د هغه چا لپاره کارېده چې عیبونه به یې ورک شول او مهذب به شو. وروسته دغه (هذب) په ادب واوښته.

د ادب کلمه په تهذیب هم معنا شوې لکه څه شی چې له چا سره لایق او مناسب وي دې ته هم ادب ویل کېږي. په تعریف کې به یې داسې ویل کېدل چې ادب هغه پوهه ده چې انسان په خپله وینا او بیان کې له تېروتنې څخه ساتي. همدارنگه ادب پوهې، زیرکی اخلاقي تهذیب او فضیلت ته هم وایي او په اصطلاح کې هغه پوهه او ریاضت دی چې انسان ته فضیلت ورېه برخه کوي او په خپلو کړو وړو کې یې له تېروتنې څخه ژغوري.

په اوسنیو څېړنو کې ادب یو ژبنی هنر دی چې واقعیتونه په انځورونو کې وړاندې کوي. ادب واقعیت مخامخ او نېغ په نېغه نه بیانوي، بلکې په ښکلي او احساس پاروونکي شکل یې وړاندې کوي. شاعر او لیکوال له واقعیت څخه خپله اخیستنه کوي او بیا یې په عاطفي بڼه انځوروي. د ادبي ژانر (شعر، کیسې، ډرامې، طنز او نورو) مهمه ځانگړتیا دا ده چې احساس ولېږدوي او که دا کار ونه کړي او د اورېدونکي یا لوستونکي پر عواطفو اغېزه ونه کړي، هغه ادبي اثر نه دی. ادب مخامخ نصیحت او لارښوونه نه کوي خو یوه پېښه داسې بیانوي چې تر لوستلو وروسته د شخص په سلوك او فکر کې مثبت بدلون راولي. بد ته بد وایي او له ښو سره مینه وکړي. ادبیات د انسان ښکلاییز ذوق تسکینوي، سرکښه غرایز تعمیروي، شاډل ذوقونه یې تربیه کوي. د غمونو او اندېښنو په وخت کې انسان ته تسلي ورکوي. ادبیات دوې مهمې برخې لري چې یوه یې تخلیقي ادبیات او بله یې تحقیقي ادبیات دي.

تخلیقي یا هنري ادبیات هغو ادبي آثارو ته ویل کېږي لکه شعر، داستان، ډرامه، طنز، ادبي ټوټه، تکل او داسې نور... تحقیقي ادبیات د ادبي آثارو د ماهیت، منشاء، تکامل او

ځرنګوالي په باره کې څېړنې ته ویل کېږي. په بله وینا تخلیقي ادبیات هنري ادبي آثار دي او تحقیقي ادبیات ددغو آثارو په باره کې بحث او څېړنه ده چې دغو تحقیقي ادبیاتو ته ادبپوهنه هم وايي.

ادبي ژانرونه

ژانر (genre) فرانسوي کلمه ده چې د نوع یا ډول معنا لري. ادبي اثار د شکل او جوړښت له پلوه د یوه یا بل ژانر په ډله کې راځي. په اروپا کې پخوا دغه ژانرونه منل شوي وو:

ایپیک، لیریک او ډراماتیک

ایپیک حماسې ته وايي. په نثر او نظم دواړو کې راتلای شي. د ایپیک یا حماسې ځینې نامتو نمونې دا دي: د هومر ایلیاد او اودیسې، د هند مهابهارا ته، د فردوسي شاهنامه، د پښتو آدم خان درخانۍ او مؤمن خان او شیرینو.

د لیریک کلمه له لاتین څخه راوتلې ده. لایر د موسیقۍ یو ډول تاریزه اله وه چې سندرې به ورسره ویل کېدې. لیریک کلمه د غنایي اشعارو لپاره کارول کېږي چې دغه اشعار د تخیل، هیجان او ترنم ځرګندې نښې له ځان سره لري او د شاعر ځانګړي احساسات ځرګندوي. په اوسني وخت کې ناول، لنډه کیسه، شعر، ادبي ټوټه او تکل منل شوي ادبي ژانرونه دي. په اوسني وخت کې د ژانر اصطلاح په پراخ مفهوم استعمالېږي، لکه داستان یو ادبي ژانر دی او د داستان هر ډول لکه لنډه کیسه، ناول، طنز او تکل هر یو ځانته ادبي ژانر دی.

همدارنګه په لیریک کې شعر ژانر دی او بیا د شعر نور ډولونه لکه غزل، قصیده، مثنوي، رباعي او داسې نور هر یو د شعر ډولونه دي.

په ایپیک یا حماسه کې هم پخوا دوه ژانرونه ډېر مشهور وو، لکه: تراژیدي او کمیډي.

د ادبپوهنې څانګې

ادبپوهنه درې څانګې لري: ادبي تیوري، ادبي کره کتنه او ادبي تاریخ.

ادبي تیوري د ادبي آثارو پر منشاء، ماهیت، تکامل، ارزښت او د ارزونې پر مېتود او لارو بحث کوي. د ادب تیوري د ادبپوهنې د نورو څانګو لپاره اصول او لارې چارې برابروي.

د مثال په توګه ادبي کره کتونکی چې یو ادبي اثر ارزوي د ارزونې معیارونه له ادبي تیورۍ څخه ترلاسه کوي.

د ادبپوهنې بله څانګه ادبي کره کتنه ده. ادبي کره کتنه پر ادبي اثارو قضاوت کوي د ادبي آثارو ښه او بد، ښکلي او بدرنګه اړخونه رابرسېره کوي. په ادبي کره کتنه کې باید له شخصي مینې، کینې، توهین او سپکاوي نه ډډه وشي او له علمي قضاوت او علمي ژبې څخه کار واخیستل شي.

د ادبي کره کتنې هدف دادی چې له لوستونکي سره د ادبي اثر په ارزونه کې مرسته وکړي او لیکونکي ته لارښوونه وکړي چې د خپلې لیکنې نیمګړتیاوې او ښېګڼې وپېژني.

ادبي کره کتنه په هغه ټولنه کې ډېره اغېزه او ګټه لري چې د بیان او تخلیق آزادي وي. که چېرې دا نه وي نو هلته ادبي کره کتنه د اختناق او سانسور د وسیلې په توګه استعمالېږي.

د ادبپوهنې بله مهمه څانګه ادبي تاریخ دی چې د ادب تاریخ او د ادبیاتو تاریخ هم ورته وایي. د ادب تاریخ هغه پوهنه ده چې د هنري ادبیاتو د پیدایښت او ودې جریان له تاریخي شرایطو سره د ارتباط په لړ کې څېړي. لکه د انسان ژوند چې څومره په ادب کې ځلېدلی، رابرسېره کوي یې. ادبي تذکره له ادبي تاریخ سره توپیر لري. په ادبي تذکره کې د لیکوال او شاعر پېژندګلوي (بیوګرافي) راځي او په ادبي تاریخ کې ادبي جریان او تحول څېړل کېږي.

د ادب دغه یاد شوي ډولونه په شلمه پېړۍ کې پښتو ژبې ته راننوتل او وپالل شول، ځکه چې شلمه پېړۍ د پښتو ادبیاتو د پرمختګ او پراختیا پېړۍ ده. په همدې پېړۍ کې د پښتو هنري نثر رامنځته شو. په همدې پېړۍ کې پښتو ناولونه، ډرامې، لنډې کیسې، ادبي ټوټې، سفرنامې، راپورتاژونه، ځان پېژندنې، تکلونه او نور ادبي ژانرونه رامنځته شول.

په همدې پېړۍ کې پښتو آثار د چاپ غېږې ته ولوېده. پښتو د راډیو په څپو کې خوره

شوه. پښتو د سینما په پرده پلې شوه. پښتو د تلویزیون او کمپیوټر په سکرین راغله.

په دې پېړۍ کې پښتو ته ټول امکانات برابر شول چې د عصر غوښتنه او د وخت ضرورت و. د دغو امکاناتو تر څنګه دا اړتیا هم پیدا شوه چې پښتانه لیکوال له نویو غوښتنو سره سم لیکنې وکړي او نړیوال معیار په نظر کې ولري.

له همدې کبله په روانه پېړۍ کې د لیک او لیکوالۍ لارښودونه هم ولیکل شول او د لیکوالۍ، املا او انشا لوستونه په درسي کتابونو کې هم شامل شول.

د متن لنډیز:

ادب یو ژبنی هنر دی چې واقعیتونه په انځورونو کې وړاندې کوي. ادب دوې مهمې برخې لري چې یوه یې تخلیقي ادبیات او بله یې تحقیقي ادبیات دي. تخلیقي ادبیات ادبي آثارو ته ویل کېږي لکه شعر، داستان، ډرامه او نور... تحقیقي ادبیات د ادبي آثارو د ماهیت منشاء، تکامل او څرنګوالي په باره کې څېړنې کوي په بله وینا تخلیقي ادبیات هنري ادبي آثار دي او تحقیقي ادبیات د دغو آثارو په باره کې بحث او څېړنه کوي. تحقیقي ادبیاتو ته ادبپوهنه هم وایي. ادبپوهنه درې څانګې لري: ادبي تیوري، ادبي کره کتنه او ادبي تاریخ.

ادبي تیوري د ادبي آثارو پر منشاء، ماهیت، تکامل، ارزښت او د ارزیابۍ پر مېتود بحث کوي. ادبي کره کتنه پر ادبي آثارو قضاوت کوي. د یو اثر ښې او بدې خواوې رابرسېره کوي او لیکوال ته لارښوونه کوي.

د ادب تاریخ هغه پوهنه ده چې د هنري ادبیاتو د پیدایښت او ودې جریان له تاریخي شرایطو سره د ارتباط په لړ کې څېړي. دا درې واړه څانګې یوه له بلې سره ارتباط لري او یو د بل مرستندوی دي.



## فعالیتونه

۱ـ زده کوونکي دې متن په چوپه خوله ولولي او لاندې پوښتنو ته دې ځوابونه ووايي:

ـ د ادب کلمه له څه شي نه راوتلې ده؟

ـ ادب په څو برخو وېشل کېږي؟

ـ ادبپوهنه کومې څانګې لري؟

ـ ادبي تاريخ څه ته وايي؟

ـ ژانر، ايپيک او ليريک کلمې څه شي ته استعمالېږي؟

۲ـ زده کوونکي دې د هغو ادبي ژانرونو نومونه واخلي چې دوی يې پېژني؟

۳ـ خو زده کوونکي دې په وار سره په کره کتنه خبرې وکړي چې کره کتنه څه ګټې لري؟

٤ـ تاسې په پښتو ژبه کې کوم اوسني ليکوال پېژنئ؟

٥ـ زده کوونکي دې د خپل راتلونکي په هکله يو يو پراګراف وليکي او په وار سره دې په ټولګي کې واوروي؟

٦ـ زده کوونکي دې لاندې لغتونه معنا او په جملو کې وکاروي:

(فضيلت، رياضت، تهذيب، منشاء، ماهيت، تکامل، اختناق، سانسور، تحول).



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د متن په موضوعاتو کې څانته يوه موضوع وټاکي او په اړه دې لس کرښې وليکي، په راتلونکي درسي ساعت کې دې ولولي.

# خوشحال خان خټک



د پښتو ادب منځنۍ دوره په نومياليو شاعرانو ښکلې ده چې هر يو يې ځانته ځانګړی ځای او آثار لري. يو له دغو نومياليو څخه خوشحال خان خټک دی چې پښتو ادب پرې وياړي. دغه د تورې او قلم خاوند پښتو ادب ته ډېر ارزښتمن کتابونه په ميراث پرې ايښي دي.

خوشحال خان خټک د پښتو ادب سرلاری دی چې د حماسي سبک په رامنځته کېدو يې ډېر لارويان په ځان پسې روان کړي. په دې لوست کې به د ده د ژوند او ادب پر بېلابېلو اړخونو پوه شئ.

- تاسې د خوشحال خان خټک په هکله څه معلومات لرئ؟
- خوشحال خان خټک پښتو ادب ته څه ورکړي دي؟
- ولې خوشحال د هند د حکمراني مغلي کورنۍ پر ضد جنګېده؟

خوشحال خان خټک د هند د مغلي پاچا نور الدین جهانګیر په وخت کې په (۱۰۲۲هـ ق)، (۱۶۱۳م) د پېښور په اکوړه کې وزېږېد.

پلار یې شهباز خان، نیکه یې یحیی خان او غور نیکه یې ملک اکوړی و. خوشحال خان په خپله یوه قصیده کې خپله پېژندګلوي په دې ډول کوي:

| | |
|---|---|
| زه خوشحال د شهباز خان یم | چې تورزن یم کان په کان |
| شهباز خان د یحیی خان و | چې بل نه و هسې ځوان |
| یحیی خان د اکوړي و | چې په توره شو سلطان |
| د اکبر بادشاه په دور | شو د خپل ولس ستر خان |

د هجرت زر دوه ویشت سن و
چې زه راغلم په جهان

د خوشحال خان مشر نیکه ملک اکوړی د هند د مغلي پاچا جلال الدین اکبر له خوا د خټکو د مشر په توګه وټاکل شو. اکبر پاچا ملک اکوړي ته له خیر اباد څخه تر نوښاره پورې سیمه په جاګیر کې ورکړه. د سرک ساتل او په پاچاهي لاره باندې د ښارویو د تګ راتګ د محصول ټولولو امتیاز هم ده ته ورکړل شو.

د خوشحال خان ژوند له ماشومتوب څخه تر سپین ږیرتوبه پورې له حوادثو ډک دی. دی شپږ کلن و چې په لنډي سیند کې ډوب شو، خو د کلي د یوې ښځې په واسطه وژغورل شو.

په اته کلنۍ کې پرې له څېرې څخه یو کاڼی راولوید او سر یې داسې ټپي شو چې یوه اونۍ له مرګ سره لاس و ګرېوان و، خو وروسته ورو، ورو په رغېدو شو.

د واده په شپه سختې تبې نیولی و او د کورنۍ غړو په بړستنو کې داسې پټ کړی و چې د ساه ایستلو توان یې نه و. خوشحال خان د پلار له مړینې وروسته د خپل قوم مشر وټاکل شو. دغه وخت د هند پاچا شاه جهان و او له خوشحال خان سره یې اړیکې ښې وې، خو کله چې اورنګزیب خپل ورونه مړه کړل او خپل پلار شاه جهان یې بندي کړ، نو خوشحال

خان یې هم په (۱۰۷٤هـ ق)، (۱٦٦٤م) کې ونیو.

خوشحال خان دوه نیم کاله په ډیلي او د جیپور د ریاست د رنتبور په زندان کې تېر کړل. بیا آګرې ته ولېږل شو. د څلورو کالو بند او نظر بندۍ څخه وروسته آزاد شو.

خوشحال خان چې کله خپل وطن ته راستون شو، نو د هوډ نیولو په تکل کې و. خوشحال په خپل یو شعر کې دغه حالت په دې ډول څرګندوي:

پس له بنده دی دا عزم د خوشحال د خاطر جزم
یا نیولی مخ مکې ته یا مغلو سره رزم

خوشحال خان د پښتنو د امپراتورۍ د بیا جوړونې او افغاني دولت د جوړښت لپاره توره تر ملا کړه او ویې ویل:

د افغان په ننګ مې وتړله توره
ننګیالی د زمانې خوشحال خټک یم

خوشحال خان له مغلو سره ډېر جنګونه وکړل. په ډېرو جنګونو کې یې مغلو ته ماته ورکړه، تر دې چې د هند مغلي پاچا اورنګزیب پخپله لاهور ته راغی او په حسن ابدال کې یې دوې میاشتې تېرې کړې.

ایمل خان مومند او دریا خان اپریدی هغه نومیالي پښتانه وو چې پخوا یې د مغولو د حکومت د ظلم او زیاتي په وړاندې د خپلواکۍ بیرغ پورته کړی او پښتانه یې د آزادۍ جنګ ته تیار کړي وو. بیا نو خوشحال خان خټک هم ددغو نومیالیو مشرانو تر څنګ ودرېد او د مغولو په وړاندې یې د ستر جنګ میدان ته ورودانګل.

د خوشحال خان د عمر وروستي څو کاله د سختو غمونو، مصیبتونو او ستونزو نه ډک کلونه وو. د خوشحال خان یو زوی بهرام خان له مغلو سره ملګری شو او هڅه یې کوله چې خوشحال خان ونیسي او مغلو ته یې وسپاري.

بهرام خان له اورنګ زیب څخه زده کړې وو چې سړی کولای شي خپل پلار زنداني کړي او خپل ورونه ووژني، نو ده هم د خپل پلار د نیولو هڅه وکړه، خو بریالی نه شو او خوشحال خان هم خپل هوډ پرې نښود. خوشحال خان د ژوند په وروستیو ورځو کې

اېريدو ته لاړ او په ډمبره نومې ځای کې يې پناه واخيسته.

خوشحال خان له ډېرو کړاوونو وروسته په ۱۱۰۰هـ ق ۱٦۸۹م له دې نړۍ څخه سترګې پټې کړې.

د خوشحال قدر که اوس په هيچا نشته
پس له مرګه به يې يادکا ډېر عالم

خوشحال خان په عقيده سني مسلمان او په اهل سنت والجماعت کې حنفي و. د اهل بيتو سره يې ډېره مينه وه. د لمونځ او روژې ډېر پابند و او د سخاوت خو يې دا حال و چې د خانۍ او سردارۍ سره صاحب نصاب شوی نه و. وضعه يې فقيرانه وه، ډېر رښتينی او د رښتيا ويلو پابند و.

د ارادې ډېر کلک، ډېر تورزن، شجاع او خود اره سړی و. همېشه د احسان تابع و په دښمنۍ کې به يې هم د احسان حق نه هېرولو. طبيعت يې تېز و. د ټوپک، غشي او باز هر قسم ښکار به يې کولو. بازونه او اسونه به يې ډېر ساتل. په کتاب، سرود او ښايست مين و، دغه شوقونه يې تر اخري عمره ساتلي وو.

خوشحال خان خټک په نظم او نثر کې ډېر کتابونه وليکل. تر ده دمخه په پښتو کې مسجع نثر دود و. خوشحال خان خټک پښتو نثر بېرته ساده او روان کړ. دستارنامه يې په ساده او روان نثر وليکله چې په نثر کې د ده تر ټولو غوره کتاب دی.

خوشحال خان خټک دستارنامه په زندان کې وليکله او په ټولنه کې يې د مشرتابه لپاره شل هنرونه او شل خصلتونه وټاکل. خوشحال خان خټک د پښتو په الفبا کې هم زياتونې وکړې. خوشحال خان خټک په شل کلنۍ کې د شعر ويل پيل کړل او پښتو شعر يې لوړو پوړيو ته ورساوه. د خوشحال خان خټک د شعر موضوعات رنګارنګ دي، خو د رزم او بزم برخه يې درنه ده. د خان وطني او ملي کلام د هغه د ادبي آثارو يوه امتيازي او مهمه برخه ده. د خوشحال خان دا د آزادۍ له ولولو نه ډک اشعار که يو خوا د وطن سره د ده مينه څرګندوي، نو له بله پلوه د پښتنو او مغلو د سياسي کشمکش د تاريخ يو مهم څپرکی دی. د خان ملي شاعري له خپل قام سره د مينې، کلک هوډ، آزادۍ، مېړانې او اصلاحي

لاربښوونو نه ډکه ده. د همدې مينې له کبله په خپل قام سخت انتقادونه کوي او د پښتنو د ښو صفتونو سره د هغوی د کردار نيمګړې خواوې هم بيانوي.

هغه د خپل ولس او ټولنې ژوره مطالعه درلوده او د ټولو اړخونو څخه ښه خبر و. دا هر څه يې په خپل شعر کې انځور کړي او د دوی د اصلاح کوښښ يې کړی دی. د ده په شاعرۍ کې د جذباتو ډېر زور، هيجان او توپان هم په ډېر اخلاص او صداقت سره ښکاري.

د خوشحال په کورنۍ کې د ده زامن او لمسيان هم شاعران وو، لکه: د ده زامن اشرف خان هجري، عبدالقادر خان خټک، صدر خان، لور يې حليمه خټکه، لمسيان يې افضل خان خټک او کاظم خان شيدا هم د ديوانونو خاوندان دي. خوشحال خان خټک په نظم او نثر کې زيات کتابونه ليکلي چې ځينې مهم يې دادي:

د نظم برخه

۱ـ ديوان: د خوشحال خان خټک د شعرونو شمېر له څلوېښتو زرو بيتونو اوړي. خوشحال خان خټک په پښتو او فارسي دواړو ژبو کې شعرونه ويلي دي. فارسي شعرونه يې هم په ديوان کې راغلي دي.

۲ـ بازنامه: يو منظوم اثر دی چې د بازونو د ډولونو، د هغوی د مرضونو د علاج او د بازونو د ښکار په هکله پکې معلومات راغلي دي.

۳ـ هدايه: د فقهې د مشهور کتاب پښتو ژباړه ده.

٤ـ آئينه: د فقهې په برخه کې دی او له عربي ژبې څخه ژباړل شوی دی.

٥ـ فضل نامه: فقهي موضوعات او نور اسلامي مسايل پکې راغلي دي.

٦ـ سوات نامه: سوات ته د خوشحال خان د تګ خاطرات او د سوات جغرافيايي حالات پکې بيان شوي دي.

۷ـ طب نامه: طبي موضوعات پکې څېړل شوي دي.

۸ـ فرخنامه: د تورې او قلم مناظره پکې راغلې ده.

۹ـ فراقنامه: د خوشحال د بند د ورځو حالات پکې راغلي دي.

د نثر برخه

۱_ دستار نامه: خوشحال خان خټک په دې کتاب کې د دستار د سرې لپاره شل هنرونه او شل خصلتونه بیان کړي دي.

۲_ بیاض: په دې کتاب کې د خوشحال خان خټک ژوند لیک، د ده د کورنۍ احوال او د ده تاریخي کارنامې راغلي دي.

له بیاض څخه د خوشحال خان خټک د نثر نمونه:

(په اخیر د جمادي الثاني د تیرا نه راروان شوم. راز علي، حسن علي، موسی و غیره ښه، ښه سواره بدرقه راسره وو.

په بازار راغلم. هور ته ایمل خان په مخه راغی، سره کېناستو. دی تیرا ته راته، وې چې راسره جار وځه، ما وې چې که زه پوهېدای چې ته به رایشې زه به ستا وراتلو ته معطل وم. اما اوس روان یم.

افریدیو ستنولم، ستون نه شوم. اوس جاروځم څه خو عیب غوندې شي. یو څو خبرې مو سره وکړې،روان شوم، افریدي مې سره رخصت کړل. سرو پای بها مې هر کدام ته ورکړه، د څخوبي په لار ایمل خان سره ډکې لره راغلم، شپه مې هورته تېره کړه. سبا بېړۍ راغله، پورې شوو، ورو، ورو مومندو کې تلو.

واړو ښه پښتونولي کوله. هر ځای به په ښه روش راغله. ضیافت و غیره به یې ښه وکړو. ځای په ځای راسره وو. تر خپل حدود نه یې تېرولو، مهمند ښه عالم ولید شه.)

د خوشحال خان خټک د کلام نمونه:

په کاته، کاته مې سترګې په خاته شي
چې خبر دې د راتلو رابانـدې وشي

ته خو اوس له ما نه لاړې مـرور شوې
دا زما یاري دې هم ګوندې په زړه شي

ګـوره تا رابانـدې کومې کـوډې وکړې
که په پښو درځنې درومم زړه مې نشي

چـې دیــدن د مـین وکـړمـه تــازه شم
لکه کښت چې په بـاران سره اوبه شي

د ښه یار ښلتون د ستوني پرېکول دي
په یـرغ به ستونی چېرې پرېکاوه شي

په ارمان د هغه وخت یم دریغه، دریغه! | که د زنې سیب یې بیا زما په خوله شي
د خپل یار د جدائیه هسې کار دی | لکه ساه چې له وجود نه په واته شي
بخته! هومره مدد بیا راسره وکړه | چې په غېږ کې مې بیا تللی یار ویده شي

د خوشحال سلام په واړو ښو یارانو
ګوندې بیا یې په لیدو سره زړه ښه شي

د متن لنډیز

خوشحال خان خټک د پښتو ادب د منځنۍ دورې هغه نومیالی شاعر دی چې په نظم او نثر کې یې په لسګونو کتابونه لیکلي دي.

دی د مغلي پاچا نور الدین جهانګیر په زمانه کې په (۱۰۲۲هـ ق) کال د پښتونخوا په اکوړه کې زیږېدلی او په (۱۱۰۰هـ ق) کې وفات شوی دی. په نثر کې یې مشهور کتاب دستارنامه دی او په نظم کې یې سوات نامه، باز نامه، طب نامه او د شعرونو دیوان ډېر زیات شهرت لري.

خوشحال خان په شل کلنۍ کې په شعر ویلو پیل کړی او په پښتو ادب کې د حماسي سبک سرلاری دی. خوشحال خان د هند د حکمرانې مغلي کورنۍ پر ضد مبارزه کوله او د اورنګزېب پر ضد جنګېده.

خوشحال خان د پښتو ادب په بېلابېلو څانګو کې مهم آثار پرې ایښي او د ادب په هر ډګر کې یې قلم ډېر ښه چلیده. خوشحال خان خټک لا ډېر پخوا د خپل ځان په هکله ویلي وو:

خټک خو پرېږده په درست جهان کې | عجب که هسې فرهنګیالی راشي



## فعالیتونه

۱ـ زده کوونکي دې لاندې پوښتنې ځواب کړي:

- خوشحال خان په کوم کال او کوم ځای کې دنیا ته راغی؟
- خوشحال خان ولې د اورنګزیب له خوا بندي شو؟
- په نثر کې د خوشحال خان کوم کتابونه پېژنئ؟
- په نظم کې د خوشحال خان مشهور کتابونه کوم دي؟

۲ـ زده کوونکي دې لاندې لغتونه معنا او په جملو کې وکاروي:

(جزم، رزم، هوډ، بزم، یرغل، فرهنګیالی)

۳ـ زده کوونکي دې په وار سره د خوشحال شعر ولولي او ښوونکی دې د زده کوونکو د شعر لوستل او د کلماتو سم تلفظ وڅاري.

٤ـ زده کوونکي دې په لاندې شعر خبرې وکړي او د شعر اصلي مقصد دې روښانه کړي:

ختېک خو پرېږده په درست جهان کې عجب کــه هسې فــرهنګیالی راشي

٥ـ زده کوونکي دې د خوشحال د کلام نمونه ولولي او بیا دې د شعر مفهوم په خپلو خبرو کې ووایي.

٦ـ یو زده کوونکی دې د خوشحال د کوچنیتوب پېښې ووایي.

۷ـ څو زده کوونکي دې د خوشحال د کورنۍ د څو تنو شاعرانو نومونه واخلي.



## کورنۍ دنده

ستاسې له نظره خوشحال خان ختېک څه ډول شخصیت دی؟

په دې اړه یوه لنډه مقاله ولیکئ. د مقالې د لیکلو په وخت کې له خپلو مشرانو څخه مرسته وغواړئ او یا هم له کوم کتاب څخه ګټه واخلئ.

# پښتو نحوه یا جمله پوهنه




په عامه توګه ژبه د پوهولو او راپوهولو یوه وسیله ده. موږ د خبرو له لارې یو بل پوهوو او خپل مطلب حلوو. په خبرو کې کلمې او جملې کاروو. د نحوې علم چې د ژبپوهنې یوه برخه ده، له جملې څخه بحث کوي. ژبپوهنه هغه علم ته وایي چې د یوې ژبې اصلي جوړښت تر څېړنې لاندې نیسي یا هغه پوهنه ده چې د معاصرو علمي طریقو پر بنسټ د ژبې ماهیت او څرنګوالی مطالعه کوي. ژبپوهنه د بېلابېلو ژبو کورنۍ د دوی خپلوي، ډلې او تاریخي بدلونونه هم څېړي.

ژبپوهنه درې برخې لري، فونولوژي (غږ پوهنه)، مورفولوژي (لغت پوهنه)، سنټکس (نحوه یا جمله پوهنه). جمله پوهنه د جملې د جوړښت او ډولونو په اړه بحث کوي.

دادی په دې درس کې تاسې ته د جمله پوهنې په اړه معلومات درکوو.

جمله څه ته وایي او په خبرو کې څه ارزښت لري؟

که د جملو جوړښت سم نه وي په خبرو کې به څه ستونزه رامنځته شي؟

## نحوه یا جمله پوهنه

## (Syntax)

نحوه عربي کلمه ده چې لغوي معنا يې لاره، طريقه، روش طرز او دود دی. په اصطلاح کې د گرامر هغه برخه ده چې په جملو کې د کلمو د ځای پر ځای کېدلو، د کلمو پر اړيکو، ترتيب او ترکيب باندې غږېږي.

په بله وينا نحوه هغه پوهنې ته ويل کېږي چې د يوې ژبې د جملو، عبارتونو، فقرو، ترکيبونو له جوړښت، ترتيب او تنظيم څخه بحث کوي.

د وينا د توکو (اجزاوو) خپل منځي اړيکې او جوړښت د نحوې موضوع ده.

څرگنده ده چې جمله پوهنه په يوې جملې کې د کلمو (مورفيمونو) د گرامري ترکيب د يوځای کېدو طريقه، ترتيب او معنوي رابطه په يوې ټاکلې ژبه کې څېړي او يا په بله وينا د جملو لفظي جوړښت او معنوي ځانگړتياوې مطالعه کوي، نو څنگه چې د نحوې د مطالعې او څېړنې اصلي او اساسي مواد جملې دي، نو په همدې توگه د کلمو ترکيب هم د جملو په جوړښت کې يوه برخه گڼل کېږي، لکه: هلک ولوېد. دا يوه ساده جمله ده او له دوو کلمو څخه جوړه ده. لومړۍ برخه يې ((هلک)) چې د جملې فاعل (مسند اليه) او دويمه برخه يې ((ولوېد)) فعل (مسند) دی، که چېرې په همدغې جملې کې د جملې د فاعل (هلک) سره ځينې مورفيمونه چې نحوي رابطه سره ولري، يوځای شي، نو دغه فاعل (هلک) د خپلو اړوندو توکو سره يو ترکيب دی. لکه ښه هلک، يو ډېر ښه هلک، يو غښتلی تکړه ښه هلک. دغه ډله کلمې له يو بل سره نحوي رابطه لري او په پورتنۍ جمله کې د هلک سره د مبتدا په حيث راځي چې د ترکيب په نامه يادېږي. همدارنگه د (ولوېد) فعل سره چې د جملې مسند دی يو شمېر نورې کلمې يوځای شي او نحوي رابطه ولري د جملې په مسند (خبر) کې راځي، لکه: سخت ولوېد، په زوره ولوېد، سخت په زوره ولوېد. يا وران ولوېد، ډېر وران ولوېد، خورا ډېر وران ولوېد.

په پورتني اسمي ترکيبونو کې گورو چې هلک د ترکيب اصلي جز دی او د خپلو متعلقاتو سره يو اسمي ترکيب گڼل کېږي او په دويمه برخه کې ولوېد د فعلي ترکيب اصلي

جز دی نو فعلي ترکیب ورته ویلی شو.

نو ویلی شو چې ترکیب د دوو یا زیاتو خپلواکو او ناخپلواکو، کلمو او مورفیمونو له یوځای کېدو څخه عبارت دی چې اجزا یې یو له بله سره ګرامري ارتباط ولري. ترکیبونه بیا په خپل وار د معنا او جوړښت له مخې بېلابېل ډولونه لري.

جمله (Sentence): جمله عربي کلمه ده. لغوي معنا یې مجموعه او ټولګه ده او په اصطلاح کې د الفاظو او کلمو یو داسې ترکیب دی چې یو بشپړ مفهوم څرګندوي. یا په بله وینا جمله د یوې ژبې هغه خپلواکه ګرامري برخه ده چې د جوړښت او معنا له مخې پوره او بشپړه وي.

د جملې بنسټیزې برخې: هره جمله دوه بنسټیزې برخې لري. مبتدا او خبر چې د جملې زړی یا هسته جوړوي. لکه په دې بېلګو کې: نجونې راغلې، ورځ تېره شوه، ټولنه وده کوي، په دغو جملو کې د مبتدا (مسند الیه) او خبر (مسند) برخې په خپلواکه توګه راغلي دي.

۱ـ مبتدا (مسند الیه، فاعل= subject)

مبتدا د جملې یوه خپلواکه (مستقله) معنا لرونکې برخه ګڼل کېږي. په جمله کې ددغې برخې په اړه خبر ورکول کېږي. یا مبتدا (مسند الیه) هغه برخه ده چې د هغې په نسبت څه ویل کېږي. یعنې د یو حکم نسبت ورته کېږي.

په دې برخه کې د اشخاصو نومونه، د شیانو نومونه، ضمیرونه، صفتونه، عددونه، قیدونه له ټولو ساده او مرکبو بڼو سره راځي. سربېره پر دې په اصلي حالت او اوښتي یا (مغیره) حالت کې هم راتلای شي. لکه: زده کوونکي د آزموینې په فکر کې دي. لمر راوخوت. خلکو خپل کار کاوه، تیل توی شول.

په پورته جملو کې (زده کوونکي، لمر، خلکو، تیل) د مبتدا (مسند الیه) او د جملو نورې برخې د خبر (مسند) په توګه راغلي دي.

۲ـ خبر (مسند): خبر یا مسند د جملې هغه بنسټیزه برخه ده چې د مبتدا (مسند الیه) حال څرګندوي. خبر هم د مبتدا په شان د وینا او کلام له ټولو توکو څخه راتلای شي. خبر

د جوړښت له مخې کېدای شي چې ساده او یا مرکب وي. خبر په دوو ډولونو وېشل کېږي.
اسمي او فعلي.

هغه جملې چې د خبر په برخه کې یې پوره فعل یا فعلي ترکیب راغلی وي، د فعلي جملې په نامه یادېږي. هغه جملې چې مبتدا او خبر دواړه یې نومونه وي اسمي جملې ورته وایي، لکه: د کلي مشر خانمیر دی (اسمي جمله)، زه ښار ته ځم (فعلي جمله).

د جملې ډولونه: جمله د جوړښت له مخې په دوو لویو ډلو وېشل کېږي، یوه ستوې یا ساده جمله، غبرګه یا مرکبه جمله.

۱ـ یوه ستوې یا ساده جمله: یوه ستوې جمله هغه ده چې له یو فاعل او یو فعل څخه جوړه وي. یا په بله وینا له یوې مبتدا او یوه خبر څخه جوړه وي، یوه ستوې جمله په دوه ډوله ده:

الف: لنډه ساده یوه ستوې جمله: هغه جمله ده چې بنسټیزې برخې (مبتدا ـ خبر) یې له یوې خپلواکې کلمې او یا لنډ ترکیب څخه جوړ وي، لکه: احمد راغی، جمیله راغله، د لمر سترګه پرېوته، سپوږمۍ راوختله.

ب: اوږده یوه ستوې جمله: هغه جمله ده چې بنسټیزې برخې (مبتدا- خبر) د څو ساده لنډو یا اوږدو ترکیبونو څخه جوړ وي، لکه:

د احمد شاه بابا ښوونځي زده کوونکو په کلنۍ آزموینه کې ښې نمرې واخیستې.

د ملالۍ لیسې نجونو د والیبال په سیالۍ کې ښې نمرې ترلاسه کړې.

۲ـ مرکبه یا غبرګه جمله: هغه جمله ده چې له دوو یا زیاتو ساده (یوه ستوو) جملو څخه جوړه او یوه جمله له بلې سره لفظي او معنوي اړیکې ولري، خو هره جمله خپلې ځانګړنې ولري.

په پښتو ژبه کې غبرګه یا مرکبه جمله دا لاندې ډولونه لري:

۱ـ پیوستې یا خپلواکې غبرګې جملې: هغه دي چې له دوو یا زیاتو یوه ستوو جملو څخه جوړې شوي وي او دغه جملې په نحوي توګه یو له بل سره مساوي حیثیت ولري. په نسبي توګه خپلواکې ګڼل کېږي، په دوه ډلو وېشل کېږي:

الف: لنډه غبرګه پیوسته جمله: چې د دواړو جملو اساسي برخې يې له لنډو ساده اسمي او فعلي ترکیبونو څخه جوړې وي، لکه:

لمر راوخوت او شاوخوا رڼا شوه، سپوږمۍ پرېوته او شاوخوا تیاره شوه

ب: اوږده پیوسته غبرګه جمله: هغه ده چې د جملې په مبتدا او خبر دواړو برخو کې د جملې اجزاوې له دوو څخه زیات توکي ولري او په اجزاوو کې يې ډېرښت او پراخوالی راغلی وي، لکه:

آزموینه راغله او زیاتره زده کوونکي د آزموینې له سختوالي څخه په ډار او اندېښنه کې دي. دا غبرګې جملې هم په دوه ډوله دي.

لومړی: آزاده یا پرانیستې جمله: هغه جمله ده چې له دوو، درېوو یا ډېرو جملو څخه جوړه وي چې شمېر يې نور هم پسې زیاتېدای شي؛ خو دغه جملې په آزاد چوکاټ کې راځي، لکه:

کله به باران ورېده، کله به واوره ورېده، کله به شین شو، کله به وربېځ شوه او د باران څاڅکي به شول.

یا: کله به ورو روان و، کله به تېز شو او په منډه به شو او چې ستړی به شو، نو دمه به یې وکړه.

۲ـ محدوده یا تړلې او ناخپلواکه غبرګه جمله

دا جملې معمولاً په دوو جملو ختمېږي. کله کله درې جملې هم سره یوځای شوي وي، لکه: باید تللی وای، خو لاړ نه شو.

د معنا له مخې د جملې ډولونه: په پښتو ژبه کې جمله د معنا له مخې په دوو لويو ډلو وېشل کېږي: ۱ـ خبري، ۲ـ ناخبري.

لومړی: خبري یا بیاني جملې: هغه جملې دي چې د یوه څيز د حال او کیفیت بیان او څرګندونه کوي. یا یو فکر د خبر په توګه بیانوي. په لیکنه کې د دې جملې په پای کې ټکی (.) ایښودل کېږي، لکه:

احمد شاه بابا د افغانستان نومیالی واکمن تېر شوی دی.

ملاله د میوند یوه اتله مېرمن وه.

خبري جمله په درې ډوله ده

الف: حقیقي مثبته خبري جمله: هغه جمله ده چې د یوې اصلي او حقیقي پېښې بیان کوي، لکه: زده کوونکو درس ولوست.

ب: حقیقي منفي خبري جمله: د هغه څه څرګندونه کوي چې په واقعیت کې یې شته والی ثابت نه وي، په دې جملو کې د نفې ادات د کومکي فعل نه مخکې راځي، لکه: زده کوونکي درس نه لولي.

ج: تاکیدي خبري مثبته جمله: هغه جمله ده چې د یوه واقعیت د تائید، تصدیق او تاکید لپاره وي. د (خو) ادات ورسره یوځای راوړل کېږي، لکه:

وطن خو په هر چا ګران دی.

دویم: ناخبري یا انشایي جمله

ناخبري یا انشایي جملې دا لاندې ډولونه لري

۱_ د پوښتنې جمله: هغه جمله ده چې ویونکی پوښتنه کوي. په دې جملو کې د یوه شخص، ځای، موضوع او وخت په باره کې پوښتنه کېږي او د ځواب غوښتونکي وي.

په ویناکې د دې جملو ځانګړنه د غږ لوړوالی او فشار وي او په لیک کې یې د پوښتنې نښه (؟) په پای کې ایښودل کېږي، لکه: چېرته ځې؟ څه وخت راغلې؟

۲_ امریه جمله: په دې جملو کې د ویناوال مطلب او موخه د یوه کار غوښتنه، امر، حکم، غوښتنې، هیلې، بلنې، مشورې او اخطار په بڼه وي. دا جملې هم د ویلو ځانګړی غږ لري، لکه: درس ولوله! راځه چې ځو! دلته راشه! بیا داسې ونه کړې! کتاب راکړه!

۳_ تعجبي جمله: دا جمله د حیرانتیا په حالت کې ویل کېږي، یا د حیرانۍ څرګندونه کوي. دا هم د پوښتنې په حالت کې ویل کېږي، خو د هغې سره یې توپیر دادی چې ځواب نه غواړي، لکه:

څومره ښه نجلۍ ده! څه کارونه دې وکړل!

٤ـ تمنايي جمله: په دې جملو کې د غوښتنې او هیلې مفهوم نغښتي وي، لکه: کاشکې ورشم، ارمان چې تللی وای.

٥ـ شکي احتمالي جمله: چې مقصد او مطلب پکې ثابت نه وي او شخص په دوو کې حیران او دوه زړی وي، لکه: ښايي ورور یې هم ورسره راشي. ګوندې ښه کتاب وي.

٦ـ ټینګاري جمله: د تاکید او ټینګار په موخه او مقصد راځي، لکه: خامخا ورځم، حتمي راشه!

٧ـ قسمیه جمله: چې په یوه کار باندې د خلکو د باور کولو لپاره په یو سپېڅلي، لوړ، محترم ذات باندې لوړه (قسم) کول ښکاره شوي، لکه: خدایږو درځم.

٨ـ دعائیه جمله: د خیر ښېګڼې د غوښتنو او ښکاره ولو لپاره ویل کېږي، لکه: ځه الله دې مرستندوی شه!

د متن لنډیز

ژبپوهنه د یوې ژبې جوړښت او ځرنګوالی تر څېړنې لاندې نیسي. درې برخې لري، غږ پوهنه (فونولوژي)، لغت پوهنه (مورفولوژي)، سنټیکس (جمله پوهنه). جمله عربي کلمه ده معنا یې مجموعه او ټولګه ده. په اصطلاح کې د کلمو داسې یو ترکیب دی چې یو بشپړ مفهوم ښکاره کړي. جمله له دوو برخو څخه جوړه ده چې لومړۍ برخې ته مبتدا او دویمې برخې ته خبر وايي.

په مبتدا کې نومونه، صفتونه، قیدونه او نور راځي. خبر د مبتدا حال ښکاره وي او په خبر کې فعلونه او نومونه راځي. د جوړښت له مخې جملې په یوه ستوې او مرکبې جملې وېشل کېږي چې هره ډله یې بېلابېل ډولونه لري.

جمله د معنا له مخې په خبري او ناخبري جملو وېشل کېږي چې بیا هره ډله بېلابېل ډولونه لري.



## فعالیتونه

۱ـ زده کوونکي دې متن په چوپه خوله ولولي او بیا دې لاندې پوښتنې ځواب کړي:

- ژبپوهنه کومې برخې لري؟
- جمله څه ته وايي؟
- جمله له کومو برخو څخه جوړه ده؟
- خبر په څو ډولونو وېشل کېږي هر ډول يې څرګند کړئ؟

۲ـ زده کوونکي دې په خپله خوښه څو جملې وليکي او په هغه کې دې مبتدا او خبر په نښه کړي.

۳ـ زده کوونکي دې په دوو ډلو ووېشل شي، يوه ډله دې د يوه ستوې جملې مثالونه ووايي او بله ډله دې په وار سره د مرکبې جملې مثالونه ووايي، ښوونکی دې د زده کوونکو تېروتنې سمې کړي.

٤ـ زده کوونکي دې د معنا له مخې د جملو ډولونه په خپلو کتابچو کې له مثالونو سره وليکي او بيا دې په وار سره په ټولګي کې ولولي، لکه (مثبته خبري جمله، منفي خبري جمله، د پوښتنې جمله، امريه جمله، تعجبي جمله، تمنايي جمله، شکي جمله)

٥ـ زده کوونکي دې په خپله خوښه يوه يوه جمله ووايي او بيا دې څرګنده کړي چې څه ډول جمله ده؟



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې په کور کې يو ځل بيا متن ولولي او د متن پر بنسټ دې په خپله خوښه څو ډوله جملې جوړې کړي. بله ورځ دې په پښتو درسي ساعت کې ولولي.

# ملي نظمونه




په پښتو ژبه کې دوه ډوله نظمونه دي چې يوه ډله يې ملي نظمونه او بله ډله د شرقي شاعرۍ په تقليد كلاسيك ديواني نظمونه دي. د ملي نظمونو برخې ته د ولسي ادبياتو نومونه كارول شوي ده، ځكه چې دا زموږ د ولس خپل مال دی او د چا په تقليد نه دي ويل شوي. د پښتو ولسي ادبيات يوه بډایه ذخيره لري چې د مختلفو ډولونو په درلودلو سره يې د سيمې په ژبو كې سيال نشته. ولسي ادبيات دوه عمده برخې لري، د نثر برخه او د نظم برخه. د نظم يوه برخه يې هغه ده چې ويونكي يې معلوم نه دي او په ټول ولس پورې اړه لري چې دې ته عامې سندرې وايي. بله برخه يې هغه نظمونه دي چې ويونكي يې معلوم دي او دې برخې ته خاصې سندرې وايي.

د ولسي ادبياتو ډېره برخه په ولس كې خوره ده او لږه برخه يې د څېړونكو له خوا راټوله شوې ده. په دې درس كې به تاسې د ملي نظمونو په اړه يو بحث ولولئ چې په ولسي شاعرۍ كې ترې زموږ ولسي شاعران ګټه اخلي.

- تاسې د ولسي شاعرۍ په اړه څه معلومات لرئ؟
- په ولسي شاعرۍ كې كوم ډولونه پېژنئ؟

نظم په لغت کې د مرغلرو پېيلو ته وايي او په اصطلاح کې هغه کلام دی چې وزن او قافيه ولري. نظم بېلابېل ډولونه لري چې دغه ډولونه د لومړي ځل لپاره په عربي ژبه کې د عروضي سيستم پر بنسټ رامنځته شوي دي او هر ډول ته يې ځانګړی قالب ټاکل شوی دی. د نظم دغه ډولونه لکه غزل، قصيده، مثنوي، مخمس، مسدس او نور هر يو ځانته جلا ځانګړی قالب او مشخصات لري چې يو له بل څخه پرې توپيرېږي.

د نظم دغه ډولونه عربي ژبې څخه فارسي او بيا پښتو ته راوړل شوي دي چې په هماغه تقليد تراوسه ويل کېږي او رواج لري. پښتو ژبه له دغه ډول نظمونو سربېره خپل ملي نظمونه هم لري چې وزنونه يې هم خپل دي او د چا په تقليد نه دي ويل شوي.

په دې توګه ويلی شو چې په پښتو ژبه کې دوه ډوله نظمونه شته چې يو ډول يې ملي نظمونه او بل ډول يې عروضي نظمونه دي چې مشترک نظمونه هم ورته وايي او دا ځکه چې دغه نظمونه په عربي، فارسي او پښتو کې مشترک دي.

ملي نظمونه: ملي نظمونه د پښتون ولس خپل مال دی. له کومې بلې ژبې څخه نه دي راغلي. په خپله ولسي شاعرانو جوړ کړي او ټاکلي وزنونه او قالبونه يې هم ورته پيدا کړي دي.

پښتو ملي نظمونه هم په دوه ډوله دي چې يو ډول ته يې عامې سندرې ويل کېږي. ويونکي يې معلوم نه وي او په ټول ولس پورې اړه لري لکه لنډۍ، سروکي، نارې، د ښادۍ بدلې او نور...

بل ډول يې خاصې سندرې دي چې د نالوستو ولسي شاعرانو له خوا جوړېږي او شاعران يې معلوم کسان وي لکه چاربيتې، بدلې، بګتۍ، لوبې، داستان، مقام او نور... دلته يې ځينې نمونې معرفي کوو:

۱ــ لنډۍ: د پښتو د شفاهي ادبياتو يو مشهور ډول دی چې ټول پښتانه يې پېژني. لنډۍ دوې مسرې لري چې لومړۍ يې لنډه نهه سيلابه او دويمه يې اوږده ديارلس سېلابه ده. لنډۍ ته د پښتنو په ځينو سيمو کې ټيکی، ټپه او مسرۍ هم وايي. د لنډيو ويونکي نه دي معلوم. د عام ولس مال دی. د نارينه وو او ښځو له خوا ويل کېږي. په لنډۍ کې يو بشپړ

مفهوم بيانېږي. په لنډيو کې د پښتنو د کليوالي ژوند او کلتور د بېلابېلو اړخونو ځانګړتياوو انعکاس موندلی دی. د لنډيو موضوعات مختلف وي او د ژوندانه هره موضوع پکې ليدلای شو.

د لنډيو څو مثالونه:

تـــن مـــې د شـــنـــې نـــکـــريـــزې پـاڼـه
ظـاهـر تـــازه دنـنـه رنـــګ پـــه ويـــنـــو يمه

* * *

د ســتـرګـو تـــور لالـــی مـــې ورك دی
پـه زرګـــر نـاسـتـه يــم څـېـره يــې جـوړومـه

۲ـ نيمکۍ يا سروکی: سروکی يو ډول شعر دی چې له لنډيو سره ويل کېږي. د سندرې د سر حيثيت لري، مختلف شکلونه لري، ځينې سروکي يوه مسره وي، ځينې دوې مسرې، ځينې درې او کله تر پنځو هم رسېږي، کله کله دواړه مسرې يو شی او کله يوه لنډه او بله اوږده وي. په سروکو کې د عشق، مينې او رزم موضوعات راځي. ځينې عام سروکي دي او ځينو ته د اتڼ سروکي وايي.

پسې ورجګ کړه سره لاسونه
لنډ کړه د ټيکۍ مزی دې
خال به دې وران شي

بله نمونه:

هلکك نری چنار دی جلۍ د ګلو ونه

يا:

لونګ کرمه که لو مې ګډ کړ ياره تا به راولمه

۳ـ نارې يا غړونه: نارې يا غړونه څو ډولونه لري لکه د اتڼ نارې، تاريخي نارې او د نکلونو نارې. د اتڼ نارې د اتڼ په ميدانونو کې ويل کېږي، تاريخي نارې د بېلابېلو تاريخي وختونو په اوږدو کې د ځينو تاريخي پېښو په اړه ويل شوي دي. د نکلونو نارې د نکل چيانو

له خوا د نکل په بېلابېلو برخو کې د نکل د کرکټرونو له خولې بیانوي. د اتڼ نارې دوه مسریزې، درې مسریزې او څلور مسریزې وي. د مسرو لنډوالی او اوږدوالی یې هم ډول ډول وي، د تاریخي نارو جوړښت دوه مسریز دی چې یوه یې لنډه او بله یې اوږده ده. د نکلونو نارې دوه مسریزې او درې مسریزې وي، کله هم قافیه وي او کله نه وي، لکه:

سر د سره پالنگه هسک کړه فتح خانه
یاغي سوي هندوستان رعیت ملکونه

* * *

کرمیه چې غم نه وي ته غم راوړې
کرمیه که زما په دعا کېږي
کرمیه په لم غوټه سپرو واوړې

چاربیته: د پښتو د ملي اشعارو یو مهم ډول دی چې کیسې، نکلونه، داستانونه او نور اوږده اوږده مضامین پکې ویل کېږي. ویونکی یې معلوم وي او د پښتو د خاصو سندرو یا نظمونو یو ډول دی. چاربیته یو سر لري چې هغه ته کسر یا پیرو وایي. کسر یا پیرو یو ځل د چاربیتې په سر کې ویل کېږي او وروسته بیا له هر بند څخه تکرارېږي. چاربیتې د مسرو د شمېر د اوږدوالي او لنډوالي له مخې یو تر بله توپیر لري. د چاربیتو د بندونو د مسرو شمېر له څلورو څخه نیولې تر شلو مسرو پورې رسېږي. همدغه سبب دی چې د مثنوي او قصیدې په شان اوږده مضامین پکې راتلای شي.

په چاربیته کې د موضوع تسلسل او ارتباط یو مهم شرط دی او په یوه چاربیته کې ډېر موضوعات نه راوړل کېږي. دلته د خانمیر د یوې چاربیتې څو بیتونه د نمونې په ډول راوړو چې هر بند یې دولس مسرې لري:

په چپ کې ډال په ښي خنجر نیسه    د غلیم مخه برابر نیسه
یا به له صدقه خپل وطن شي زما    یا به په سرو وینو کفن شي زما

په دروغو نه دي دغه لاپې زما
که چېرې برید مې یو ځل راغی په تا
ماته وصیت د موره پلاره شوی
د ننګ پر ځای ورکوئ سر زامنو
وصیت د پلار به ګاهې هېر نه کړمه

په غورو واوره واړه پاکې زما
پوه شه اجل دی دا چې راغی په تا
یو ځلې نه په څو، څو واره شوی
مختورن مه شئ په محشر زامنو
څو ځان د هغه پلار په څېر نه کړمه

کله به هېر د پلار سخن شي زما
یا به په سرو وینو کفن شي زما

رباعي: د پښتنو عوام خلک هغه غزلې ته چې موضوع یې پند او نصیحت وي، رباعي وايي. کله چې سندر غاړی په ساز پیل کوي لومړی یوه رباعي وايي او بیا وروسته چاربیته یا داستان او یا لوبه اوروي. ځینې خلک ورته مقام هم وايي.

د مجلس په پیل کې له دې کبله اورول کېږي چې د مجلس د ګډونوالو پاملرنه ځانته راړوي. دلته به د رحمان بابا یو شعر چې د مقام او رباعي بڼه لري ولولو:

په ښه خوی د بد خواهانو بې پروا یم
په نرمۍ لکه اوبه د اور سزا یم
و هر چاته په خپل شکل ښکاره ږم
آینې غوندې بې رویه بې ریا یم
قناعت مې تر خرقې لاندې اطلس دی
پټ د درست جهان بادشاه ظاهر ګدا یم
د غونچې په څېر په سل ژبو خاموش یم
لکه بوی هسې په پټه خوله ګویا یم
که چا لار د عاشقۍ وي ورکه کړې
زه رحمان د ګمراهانو رهنما یم

بګټۍ: په پښتو اشعارو کې بګټۍ يوه غوره او خوږه برخه ده چې ځينې خلک يې لوبه هم بولي. بګټۍ د چاربيتو په څېر يو سر لري چې په عمومي ډول يو بيت وي او د دواړو مسرو قافيه يې سره برابره وي. د هر بند وروستنۍ مسره د بګټۍ له سر سره په قافيه کې برابره وي.

سر د هر بند په پای کې تکرارېږي. د سر لومړۍ مسره يې اوږده او دويمه يې لنډه وي.

د بګټۍ هر بند معمولاً درې مسرې وي:

غمونه لرې که له ما عاجز غمګينه راتـــاو شه لـــونـــګـينه

ودې ويشتم روغـــــه دې نه کــړم نوره ياري درسره نه کړم

بل دې په سرو شنډو نتکۍ زانګي مينه

راتـــاو شــــه لـونګينه

د محمد نور فقيره بخته څنګه راپرېوتې لـه تخته

بخت مې کوټه شو اس مې لاړ سره له زينه

راتـــاو شــــه لـونګينه

د متن لنډيز

په پښتو کې دوه ډوله نظمونه ويل کېږي چې يو ډول ته يې ملي نظمونه وايي او بل ډول ته مشترک کلاسيک ديواني نظمونه چې په عربي، فارسي او پښتو کې مشترک دي.

په دې لوست کې مو يوازې په ملي نظمونو بحث وکړ او د هغوی له ډلې مو يو څو نمونې دروپېژندلې. ملي نظمونه هم په لومړي سر کې په دوو ډلو وېشل کېږي چې يوې ډلې ته يې عامې سندرې وايي. عامې سندرې هغه دي چې ويونکی يې معلوم نه وي او د ټول ولس مال دی.

په دغو سندرو کې لنډۍ، کاکړۍ، نيمکۍ يا سروکي، نارې يا غړونه، کيسې، فالونه، د ښادۍ سندرې او د ميندو سندرې راځي.

بله ډله يې خاصې سندرې دي. د دې سندرو شاعران په ولس کې معلوم دي او د ولسي شاعرانو په نومونو يادېږي. په دې ډله کې چاربيتې، بدلې، بګټۍ، لوبې، داستان، مقام او نور...

د پښتو دغه ملي اشعار د پښتو ادبياتو يوه مهمه برخه ده چې د پښتنو د اجتماعي، ملي، سياسي او فرهنګي ژوند ټولو خواو پکې انعکاس موندلی دی. د پښتو دا ملي نظمونه د نورو ژبو په تقليد نه دي ويل شوي، بلکې په خپله د پښتنو ايجاد دی.

## فعاليتونه

۱ـ زده کوونکي دې متن په چوپه خوله ولولي او بيا دې لاندې پوښتنې ځواب کړي:

- په پښتو ژبه کې څو ډوله نظمونه پېژنئ؟
- نظم څه ته وايي؟
- په ملي نظمونو کې کوم ډولونه پېژنئ؟
- لنډۍ څه ته وايي؟

۲ـ زده کوونکي دې په خپله خوښه د يو ملي نظم په اړه څو کرښې له مثالونو سره وليکي او په ټولګي کې دې په وار سره واوروي.

۳ـ زده کوونکي دې په وار سره په متن کې راغلي نظمونه په لوړ غږ ولولي او مفهوم دې په خپلو خبرو کې ټولګيوالو ته ووايي.

٤ـ زده کوونکي دې په وار سره د ملي نظمونو په موضوعاتو خبرې وکړي چې کوم موضوعات پکې راځي؟

۵ـ متن په غور ولولئ او په متن کې خاص نومونه په نښه او په ټولګي کې يې ووايئ.

خاص نوم: هغه نوم دی چې د یو خاص شخص او خاص ځای ښکارندویي کوي، لکه: احمد شاه بابا، ملالی، ننګرهار، کابل او نور...

۶_ زده کوونکي دې متن ولولي او د صفت کلمې دې په خپلو کتابچو کې ولیکي او بیا دې په ټولګي کې ولولي.

صفت (ستاینوم): صفت هغه کلمه ده چې د نوم څرنګوالی څرګندوي، لکه: تور، سپین، ښه، بد، روغ، ناروغ، لوړ، ټیټ او نور...

۷_ زده کوونکي دې په وار سره د رحمان بابا شعر ولولي او پر مفهوم باندې دې خبرې وکړي.

په ښه خوي له بدخواهانو بې پروا یم
په نرمی لکه اوبه د اور سزا یم
و هر چاته په خپل شکل څرګندېږم
آیني غوندې بې رویه بې ریا یم
د غونچې په څېر په سل ژبو خاموشه
لکه بوی هسې په پټه خوله ګویا یم
قناعت مې تر خرقې لاندې اطلس دی
پټ د درست جهان بادشاه ظاهر ګدا یم



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د خپلې سیمې د یوه ولسي شاعر په اړه څو کرښې ولیکي او د ضرورت په وخت کې دې د کورنۍ له غړو او یا کتاب څخه مرسته ترلاسه کړي.

# ولسي کیسه



کیسې د انسان له ژوند سره پیل شوي دي او بیا خوله په خوله له یو نسل نه بل ته لېږدول شوي دي. کله چې انسانانو خط ایجاد کړ، نو بیا ځنې کیسې ولیکل شوې. خو د ولسي کیسو زیاته برخه اوس هم د خلکو په ذهنونو کې ده او راټولې شوي نه دي. د ولسي کیسو ویونکي معلوم نه وي په یو شخص پورې اړه نه لري بلکې په ټولو پورې اړه لري.

هر ملت ځانته ولسي کیسې لري چې د هماغه ملت ځانګړتیاوې، دود دستور او تاریخ ترینه څرګندېږي. ځینې ولسي کیسې د ملتونو ترمنځ مشترکې وي او یوازې د اشخاصو او ځایونو نومونو یکې تغییر موندلی وي. د ولسي کیسو زیاته برخه خیالي بڼه لري. حوادث او پېښې یکې له عقل نه لرې او تخیلي بڼه لري. په ولسي کیسو کې یوه برخه داسې هم شته چې د ریښتیني ژوند له پېښو سره تړاو لري او خیالي بڼه نه لري. د نړۍ د ملتونو له ولسي کیسو څخه ځینې کیسې دومره شهرت ته رسېدلي دي چې په نړیوالو ولسي کیسو کې شمېرل شوي دي او د دغه شهرت له کبله د نړۍ په ډېرو ژبو ژباړل شوي دي.

په دې لوست کې مو د چک د ولس یوه ولسي کیسه غوره کړې چې د دې کیسې په لوستلو سره به تاسې د نړۍ د ولسي کیسو سره آشنا شئ.

- کومه ولسي کیسه مو په یاد ده؟
- د کوم بل هېواد ولسي کیسه مو اورېدلې ده؟

ولسي کیسه د پښتو ژبې د شفاهي ادبیاتو ډېره خوندوره برخه ده. داسې کیسې له پېړیو، پېړیو راهیسې د ولس په حافظه کې پاتې شوي دي او ځینې کیسې یې تر نن ورځې رارسېدلي دي. دا کیسې په کلیو او بانډو کې موجودې دي. که کومه کیسه په یوه کلي کې رامنځته شوې ده، نو هلته پاتې شوې نه ده او نورو کلیو ته رسېدلې او عامه شوې ده. دغه کیسې چې له یو ځای څخه بل ځای ته انتقال شوي ځینې محیطي اصطلاحات او جغرافیوي نومونه یې تغییر شوي دي. په دې توګه د وخت په تېرېدو سره یې د بیان په ژبه کې هم تغییر راغلی دی.

د پښتو په ولسي کیسو کې دوه ډوله کیسې دي چې یو ډول یې د پښتنو خپلې کیسې دي او بله ډله یې له نورو ژبو څخه راغلې دي. د پښتنو په خپلو ولسي کیسو کې قهرمانان، چاپېریال او ټول کړه وړه پښتني وي. په دې کیسو کې پېښې او کرکټرونه هم پښتني رنګ لري. دا کیسې ځینې ډېرې اوږدې او ځینې لنډې دي.

په دې کیسو کې بیا ځینې په نظم شوي او ځینې په نثر کې دي. دا کیسې مختلف موضوعات لري او د پند او عبرت ټکي هم پکې وي. په ځینو کې تخیلي اړخ ډېر غالب وي لکه د دیوانو او پیریانو کیسې او ځینې یې له ربښتیني ژوند سره اړخ لګوي.

دا کیسې پخوا په ولسونو کې د ژمي په موسمونو کې د ساعت تېرولو لپاره ویل کېدلې، خو د ساعت تېرۍ تر څنګه یې ځینې مثبتو خواو د ولس په کړو وړو کې مثبت اغېز هم درلود.

اوس د دې کیسو ویلو رواج یا خو بیخي پای ته رسېدلی او یا په ډېره لږه اندازه موجود دی، همدغه وجه ده چې زموږ یو شمېر ناظمانو زموږ ولسي کیسې په نظم کړې لکه آدم خان او درخانۍ، دلۍ او شهۍ، مؤمن خان او شیرینو، طالب جان او ګل بشره، موسی خان او ګل مکۍ، فتح خان او رابیا او نورې...

ځینو لیکوالو په نثر کې هم ولسي کیسې او واړه واړه حکایتونه راټول او په کتابي شکل خپاره کړي دي. د دې کیسو راټولول او خپرول زموږ د ژبې او ادبیاتو په بډاینه کې ستره اغېزه لري.

# ښوروا

(د چِک ولس کیسه)

یوه شپه له سیلۍ سره باران هم ورېده، سخت توپان و او خلک په خپلو کورونو کې وو. یوه سپین سرې ښځه ځانته یوازې اوسېده. د هغې د کور دروازه وډبېده. هغې فکر وکړ چې سیلۍ دروازه ټېل وهله. خو لږه شېبه نه وه تېره چې ور په زوره، زوره وډبېده.

سپین سرې ژر دروازه خلاصه کړه. ویې لیدل چې یو ځوان سړی په لمدو خیشتو جامو کې ولاړ او له یخنۍ نه رېږدي. سپین سرې ښځې ته یې وویل:

ـ زه مسافر یم، که نن شپه دې راته په خپل کور کې ځای راکړ نو زه به دې دا احسان ټول عمر نه هېروم.

سپین سرې ښځې وویل:

ـ ښه ده، دننه راشه په نغري کې اور بل دی. خپلې لمدې جامې وچې کړه، خو زه ډوډۍ هم نه لرم او ستا لپاره کټ هم نشته. ته مجبوره یې چې له نغري سره نژدې پر دې کمپله شپه تېره کړې.

سړي ورته وویل:

ـ بس چې سرپناه وي، نور مې هېڅ نه دي په کار.

ښځې په نغري کې نورې وچې دړې کېښودې. اور تازه شو. سړی چې تود شو او جامې یې هم وچې شوې نو د خپل کمیس له جیبه یې د اوسپنې یو میخ راویست. دا به یې په خپلو لاسونو کې اړاوه را اړاوه.

ښځې ورته کتل خو غږ یې نه کاوه. سړي ښه شېبه له دې مېخ سره لوبې وکړې. بیا یې له ښځې پوښتنه وکړه:

ـ ته خبره یې چې دا میخ څومره د کار دی؟

ښځې له ورۍ نه تار جوړاوه. په ډېره وچه لهجه یې ورته وویل:

ـ هو خبره یمه، مېخ په لرګي کې ټکوهل کېږي.

سړي وخندل او وې ویل:

ـ ته نه یې خبره، زه له دې مېخ نه ښوروا جوړولای شم.

ښځې لږ په قهر وویل:

ـ هسې اوتې بوتې مه وایه، دا ناشونې ده.

سړي وویل: که ما درته ثابته کړه نو منې به یې.

ښځې وویل: ښه ده ثابته یې کړه.

بیا یې د ښوروا پخولو دیګ ورته راوړ. سړي مېخ د دیګ په تل کې کېښود او اوبه یې پکې واچولې. بیا یې دېګ په اور کېښود. لږه شیبه چې تېره شوه، نو سړي د دېګ سر لرې کړ او ښځې ته یې وویل:

ــ که لږه مالګه او تور مرچ راکړې نو ښوروا به تیاره شي.

ښځه پاڅېده د یوې المارۍ دروازه یې پرانیستله او وې ویل:

ــ هو مالګه او مرچ خو په هر کور کې وي.

سړي ته یې د مالګې او تورو مرچو پوړۍ ورکړې. ده مالګه او تور مرچ په دېګ کې واچول. یو څو شېبې نورې هم تېرې شوې. سړي بیا د دیګ سر ایسته کړ او ویې ویل:

ــ د پیازو یوه غوټه که وای نو د ښوروا خوند به نور هم زیات شوای وای.

ښځې ورته بد، بد وکتل خو بیا له ځایه راپاڅېده او وې ویل:

ــ ګورمه که چېرې پیاز وي!

یوې بلې المارۍ ته لاړه او د هغې دروازه یې پرانیستله. سړي سر اوچت کړ او په الماریۍ کې یې د خوړو توکي ولیدل.

ښځې د پیازو یوه غوټه راواخیسته او سړي ته یې وویل: اوس به نو ته چاقو هم غواړې.

سړي وخندل او د ښځې نه یې پیاز او چاقو واخیستل. پیاز یې ټوټې، ټوټې کړ او دېګ ته یې ور واچاوه. بیا یې اور تازه کړ، څو نورې درې یې ورپسې کړې او وې ویل: ښوروا هم هر ډول وي. د مېخ ښوروا ساده وي، خو که په دې کې ګازرې او الوګان ورګډ شي، نو خوند به یې لا زیات شي خو خیر پروا نه کوي.

اوس له دېګ نه د پیازو د پخېدو خوشبویي پورته شوې وه او ښځې نابېره د لوږې احساس وکړ، د سړي خبرو ته یې پام و. بې له دې چې هغه ته یې څه ویلي وي. الماریۍ ته لاړه او یو څو ګازرې او دوه الوګان یې ترې راواخیستل او سړي ته یې ورکړل. سړي ګازرې او الوګان سپین، ټوټې ټوټې او بیا یې په دېګ کې واچول.

لږه شیبه وروسته یې چې د دېګ سر لرې کړ او د ښوروا خوشبویي د ښځې سپږمې وتخنولې له سړي یې وپوښتل: په څومره وخت کې به دا ښوروا پخېږي؟

سړي په څمڅې د دېګ له تل نه مېخ راوچت کړ او ویې ویل:

ـ د دې مېخ ښوروا ډېرو کمو خلکو خوړلې ده، خو که په دې کې د غوښې وړې، وړې ټوټې ورګډې شي نو بیا د پاچاهانو خواړه دي.

خو زما او ستا په شان خلك دومره طالع نه لري چې په دې ښوروا کې غوښه ولري.

ښځې ناڅاپه وویل: ولې یې نشو خوړلای. پاچاهان خو هم زموږ په شان انسانان دي.

بیا لاړه او له المارۍ نه یې د غوښې یوه ټوټه راواخیسته. وره، وره یې کړه او سړي ته یې ورکړه. سړي د غوښې ټوټې په دېګ کې واچولې. اور یې ورپسې تازه کړ او ویې ویل:

ـ اوس چې موږ داسې ښه د پاچاهانو خواړه لرو نو باید د پاچاهانو په شان یې وخورو.

ښځې وویل: بېشکه ولې نه.

د کوټې بل سر ته لاړه. هلته یې یو مېز او دوه څوکۍ ایښې وې. له المارۍ څخه یې یو ښه ښکلی د مېز پوښ راواخیست او پرمېز یې اوار کړ.

بیا یې چیني لوښي راویستل او پر مېز یې کېښودل. کاشوغې یې هم راویستلې. سړي دا هر څه ته کتل او بیا یې وویل: ښوروا په څه شي کې راوباسم؟

ښځې ورته د ښوروا لپاره یوه غټه کاسه او یوه رکیبۍ د غوښې او ترکاري لپاره ورکړه. بیا یې یوه غټه ډوډۍ هم راویستله. ټوټې ټوټې یې کړه او پرمېز یې کېښوده. سړي وویل:

ـ که ډوډۍ دې را ایستله نو باید چې پنیر هم ورسره وي، ځکه چې د مېخ د ښوروا له خوړلو څخه وروسته د هضم لپاره پنیر ضروري دی.

ښځې پنیر هم راواخیست. دواړو ښوروا، ډوډۍ او پنیر وخوړل. سړي ځان ښه موړ کړ. ښځې ته یې وویل: ستا نه ډېره مننه!

ښځې ورته وویل: مننه خو ستا په کار ده چې دومره ښه ښوروا دې راته پخه کړه.

سړي د ښوروا د کاسې په تل کې پروت مېخ راویست او وې ویل:

ـ په دې کې زما هېڅ کمال نشته، دا هر څه د دې مېخ له برکته دي.

ښځې وویل: اوس چې تا دومره ښه خواړه راته برابر کړل، نو حق لرې چې په کټ ویده شې. زما هسې هم ډېر ساړه کېږي. زه به د نغري سره په کمپله پرېوځم.

سړي شپه ارام خوب وکړ. سهار ښځې ورته چای او ډوډۍ ورکړل او بیا یې ورته وویل: ستا مېخ رښتیا چې عادي مېخ نه دی. سمبال یې وساته چې څوك یې پټ نه کړي.

سړي ترینه رخصت واخیست او پرخپله لار روان شو.



## فعالیتونه

۱ـ زده کوونکي دې کیسه په چوپه خوله ولولي او لاندې پوښتنې دې ځواب کړي:

- دا کیسه په کوم ولس پورې اړه لري؟
- په کیسه کې کوم کرکټرونه راغلي دي؟
- د کیسې موضوع څه ده؟
- د کیسې پایله څه ده؟

۲ـ څو زده کوونکي دې کیسه په وار سره ولولي او بیا دې څو زده کوونکي د کیسې مفهوم په خپلو خبرو کې ووايي او نور زده کوونکي دې په وار سره د کیسې په اړه پوښتنې وکړي.

۳ـ زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې د کیسې د دې دوه کرښو په اړه خپل نظر ولیکي او بیا دې يې په وار سره په ټولګي کې واوروي:

((سړي د ښوروا د کاسې په تل کې پروت مېخ راويست او وې ویل: په دې کې زما هېڅ کمال نشته، دا هر څه د دې مېخ له برکته دي)).

٤ـ هغه زده کوونکي چې دې کیسې ته ورته کومه ولسي کیسه يې اورېدلې وي په لنډو خبرو کې دې خپلو ټولګیوالو ته ووايي.

٥ـ له کیسې نه تاسې څه نتیجه واخیستله؟ په وار سره خپل نظر څرګند کړئ.



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې په خپلو کورونو کې د کورنۍ د غړو په مرسته یوه، یوه ولسي کیسه ولیکي او د کیسې مقصد دې هم په خپله لیکنه کې څرګند کړي. بله ورځ دې په ښتو درسي ساعت کې ولولي.

# سید بهاو الدین مجروح




د پښتو ادب په معاصره دوره کې په سلګونو لیکوال او شاعران شته چې د ادب په بېلابېلو څانګو کې یې د پاملرنې وړ آثار پنځولي دي. لکه شعر، داستان، ناول، ډرامه، سفرنامه او نور... یو له دغو نومیالیو څخه پوهاند سید بهاو الدین مجروح دی چې له علمي فلسفي آثارو سربېره یې شعرونه هم ویلي او فلسفي، رواني، داستاني آثار هم لري. په داستاني آثارو کې یې ځانګړې ښامار او په شعرونو کې یې نا آشنا سندرې، د وطن مور پیغام او د کونړ سیند زیات شهرت لري. په دې درس کې به تاسې د دغه نومیالي له ژوند او آثارو سره آشنا شئ.

ـ تاسې د پښتو ادب په معاصره دوره کې د کومو لیکوالو او شاعرانو له نومونو سره آشنا یاست؟

ـ د پوهاند سید بهاو الدین مجروح د ژوند په اړه څه معلومات لرئ؟

ـ تاسې د مجروح کوم آثار او کتابونه پېژنئ؟

سید بهاوالدین مجروح د افغانستان نومیالی شاعر، ادیب او لیکوال و. پلار یې سید شمس الدین مجروح هم له نومیالیو شاعرانو څخه و. سید بهاوالدین مجروح د کونړ ولایت د اسمار ولسوالۍ د شینکوړک په کلي کې په یوه روحاني کورنۍ کې په ۱۳۰۶هـ. ش. کال کې پیدا شو.

لومړنۍ زده کړې یې د کلي په جومات کې سرته ورسولې او د فارسي مشهور کتابونه لکه گلستان، بوستان او سکندر نامه یې ولوستل.

بیا له خپل پلار سره کابل ته راغی او د استقلال په ښوونځي کې یې خپلې زده کړې پیل کړې. له ښوونځي څخه وروسته د لوړو زده کړو لپاره فرانسې ته ولېږل شو. هلته یې د روحیاتو او فلسفې په څانگه کې زده کړې وکړې او هم یې د الماني او انگرېزي ژبو ادبیات په المان او انگلستان کې ولوستل. هېواد ته له راستنېدو سره سم د ادبیاتو په پوهنځي کې د استاد په توگه مقرر شو چې بیا وروسته د دغه پوهنځي انتخابي رئیس وټاکل شو.

سید بهاوالدین مجروح د رسمي کارونو په لړ کې د کاپیسا د والي، په غربي المان کې د افغانستان د کلتوري رئیس او د ادبیاتو پوهنځي د استاد او انتخابي رئیس په توگه دندې سرته رسولي دي.

په المان کې یې د رسمي کار تر څنگه د فرانسې له (مونت پلیه پوهنتون) څخه د ادبیاتو او فلسفې په څانگه کې دوکتورا واخیسته.

یو وخت د افغانستان د تاریخ ټولنې رئیس هم و او د ادبیاتو په پوهنځي کې یې د فلسفې تدریس کاوه. په ۱۳۵۸هـ. ش. کال، کله چې روسانو پر هېواد یرغل وکړ نو مجروح د هجرت لاره ونیوله او په پېښور کې یې (افغان اطلاعاتي) مرکز جوړ کړ، د دغه مرکز دنده دا وه چې د افغانستان له حالاتو څخه نړیوال خبر کړي او هم به یې د افغانستان په حالاتو تبصرې او تحلیلونه کول.

مجروح په (۱۳۶۷هـ. ش.) کال د پېښور په ښار کې د نامعلومو کسانو له خوا شهید شو. په پېښور کې خاورو ته وسپارل شو او بیا په ۱۳۸۱هـ. ش. کال کې د ده تابوت افغانستان ته راوړل شو او پخپله پلرنۍ هدیره کې ښخ شو.

سید بهاو الدین مجروح خپل ټول ژوند د علم او پوهې په خدمت کې تېر کړ. د هېواد ځلمیان یې وروزل او علمي او سیاسي لیکنې یې وکړې چې په دې لړ کې یې خپاره شوي کتابونه په لاندې ډول دي:

۱ـ اژدهای خودي (په پنځه ټوکو کې).
۲ـ ځانځاني ښامار (د اژدهای خودي پښتو ژباړه د آزاد شعر په قالب کې)
۳ـ د جبر او اختیار دیالکتیک (یو فلسفي اثر)
٤ـ دښمن وپېژنئ
٥ـ نا آشنا سندرې (د شعرونو ټولګه)

مجروح لکه د نورو فیلسوفانو په څېر د انساني ژوند او آزادۍ د معنا د لټون لپاره د حقیقت د لارې لاروی و. د ده په ټولو اثارو کې دغه اصل څرګند دی. په شعرونو کې یې وطني رنګ ډېر پیاوړی دی او د هغه وخت ټولې پېښې یې په خپلو شعرونو کې رانغښتي دي.

دده ټول شعرونه ښکلي او په زړه پورې دي، خو د وطن مور، د کونړ سیند او پیغام یې چې اوږدې منظومې دي، ډېر مشهور دي.

د ځانځانی ښامار یې د آزاد شعر په قالب کې د ارواپوهنې (روحیاتو) او فلسفې یو ګډ اثر دی چې داستاني بڼه لري او د انسان د شعور او لا شعور څخه بحث کوي.

د پښتو ژبې نامتو ادیب عبدالرووف بېنوا د دې اثر په هکله ویلي وو: ((دا یو لومړنی عالي فلسفي اثر دی چې په نوي خوندور اسلوب لیکل شوی دی او تراوسه یې ما په پښتو کې ساری نه دی لیدلی. دا یو مقدس بغاوت دی چې مجروح د ځانځانی د هغه فاسد، غلط او په عین حال کې د غضبناک، ډاروونکي او پر ځان مین اقتدار پر ضد بغاوت کړی دی.))

د ځانځانی ښامار له کتاب څخه یوه وړه ټوټه د نمونې په توگه را اخلو:

یو دفتر د زمانې په ختمېدو و
یوه ورځ د ورځو راغله
ډېر بې شماره ښاریان غونډ وو د ښار منځ کې
لاروی د نیمو شپو پاڅېد ولاړ شو
اخر دا نا آشنا بیان یې ښار ته وکړو:
اې ښاریانو ښه خبر شئ!
ستاسو ستر واکدار بادار خو،
تور ښامار دی
تاسو واړه بنده گان یاست غلامان یاست،
هسې تږي،
لکه وینو ته چې تږي وي د غرو رغو لیوان ټول
زړه یې کلک لکه تور کاڼی د بیابان،
لکه سندان دی
که هم وڅښي سمندر سمندر وینې
تنده یې لا پسې لمبه د اور لمبه شي
که هم وخوري غرونه غرونه ژوندي سري
لوږه یې لا پسې زیادت کا لا شدت کا
په لېوانو کې لېوه له وږو وږی
په دریاب کې پروت نهنگ له تږو تږی
اې ښاریانو!
ورشئ ورشئ!
خپل بادار ته له نژدې نه لږ څه ځیر شئ!
هغه سترگې چې د ده دي دوه د وینو کټوري دي،

دغه سترګې د ښامار دي
هغه سرې لمبې د قهر او د غضب چې،
د واکدار د مخ څېرې نه پورته کېږي،
هغه اور دی چې راوځي د ښامار پوزې سپږمو نه
د بادار هغه منګولې چې قوي دي پولادينې
ستاسو زړونو کې ټومبلې کلکې خښتې،
دا منګولې د بلا دي، د ښامار تورې بلا دي
اې ښاريانو!
ښه خبر شئ
دا بلا توره بلا چې دلته ناسته په دې ښار ده
له کوم بل پردي هېواده خو راغلې دلته نه ده
دا بلا ده په دې کور کې روزل شوې
له دې سيمې پاڅېدلې
پخپل لاس مو له خپل ځانه راويستلې
په خپل ځان مو مسلط کړې
دا بلا ستاسو بلا خپله بلا ده
ځکه ځکه تاسو هر يو
ښاماران ساتئ روزئ پټ
په سينو په خپلو زړو کې
چې د لوی ښامار خوراک شي
چې ښامار لوی نور هم لوی شي زورور شي
خلاصېدای له دې ښاماره تاسو نشئ
دا ښامار وژلی نشئ
تر څو تاسو راپا نه څئ

دا ښامار په خپلو زړونو کې مړ نه کړئ، نابود نه کړئ
که د نفس بده بلا کړي څوک نابوده
نو به هله د بلا تورې بلا څوک خوراک نه شي
که د خپل زړګي ښامار مو قرباني کړو
نو به هله تاسو نه شئ قرباني د لوی ښامار مار
پوهاند مجروح پخپله د ځانځاني ښامار په اړه ليکي:

((د ځانځاني ښامار ژبه نه نثر دی ځکه چې وزن لري او نه نظم دی، ځکه چې د قافيو او رديفونو مراعات پکې نه دی شوی او نوی شعر ورته ويلای شو. خو دا چوکاټ د اوسنيو نويو شعرونو تقليد نه دی، بلکې د دې چوکاټ په جوړښت کې د پښتو د شفاهي ادب د ځينې اشکالو څخه او د پښتو د ليکلي ادب د ځينو زړو نثرونو څخه الهام اخيستل شوی دی. په دې شان د ښامار سبک داسې يو سبک دی چې هم د اوسنۍ نړۍ د نوي شعر بڼه لري او هم د پښتو ژبې په شفاهي او ليکلي ادب کې پخې ريښې لري)).

پوهاند مجروح د ځانځاني ښامار لپاره يو ځانګړی وزن ايجاد کړی چې هره جمله په (٤) يا په (٨) يا په (١٢) او يا په (١٦) سيلابونو درېږي؛ خو اصلي او بنسټيز وزن پکې څلور سپلابه جمله ده.

دا سبک پوهاند سيد بهاو الدين مجروح د پښتو د شفاهي ادبياتو او د پښتو ادبياتو د کلاسيکو نثرونو څخه په الهام اخيستی دی.

د ځانځاني ښامار د مطالبو په هکله پخپله مجروح وايي: ((ځانځاني ښامار د انساني ژور طبيعت د تمرد او عصيان بيان دی او دا واقعيت درې جلا اړخونه لري، يو يې نفسي انفرادي اړخ دی، بل يې اجتماعي او سياسي اړخ دی او دريم د دې دواړو اړخونو ترکيب دی او هغه د انساني موجوديت فلسفي معنا ده.

دا هم د مجروح د کلام يوه نمونه چې د هغه د (نا اشنا سندرې) له کتاب څخه تاسو ته انتخاب شوې ده:

## د مور غږ

ته سپارلی ما په خدای یې مور دې ځار شه
مال د خدای یې هم هغه دې مددګار شه
ستا نه ځار شم شهادت که نصیب ستا وي
په دې کار کې به د رب خپله رضا وي
که له ملک نه دې بهر کفر الحاد کړو
که غازي شولې وطن دې خپل ازاد کړو
نو یوه ورځ به د غازیانو لښکر راشي
ته به راشې بیا به نوی اختر راشي
دواړه لاس به په نکریزو بیا رنګین کړم
شینکی خال به بیا تازه پاس په جبین کړم
بیا به زه یمه سر لوړې په خپل کور کې
هم خوشحاله خو ژوندۍ یم هم په ګور کې
په ګاونډ چم په ګودر کې به خندا نه
مسته ګرځمه په زړه همېشه ځوانه
بیا به ګرځم په دې دښت په دې دمن کې
هسکه غاړه په ازاد آباد وطن کې

د متن لنډېز:

پوهاند ډاکټر سید بهاو الدین مجروح د هېواد له نومیالیو عالمانو، لیکوالو او شاعرانو څخه دی. لوړې زده کړې یې په فرانسه او المان کې د دوکتورا تر درجې پورې سرته رسولې وې. د ادبیاتو په پوهنځي کې یې د فلسفې تدریس کاوه او په دولتي کارونو کې یې د رئیس او والي په توګه هم دندې سرته رسولي دي. مجروح زیات شمېر علمي لیکنې او څو کتابونه هم لري چې خپاره شوي دي. په پښتو ژبه کې یې د ځانځاني ښامار او نا اشنا سندرې د یادولو وړ

آثار دي چې زيات مينه وال لري.

مجروح د ځانځاني ښامار په ليکلو سره په پښتو ادب کې يو نوی سبک رامنځته کړ چې پخوا تر ده نه و.

مجروح د دغه کتابونو تر څنګه په فرانسوي ژبه د پښتو ادب او په تېره بيا د لنډيو په پېژندنه کې هم ډېرې ليکنې کړې دي. د جبر و اختيار ديالکتيک يې يو فلسفي اثر دی.



## فعاليتونه

۱ـ زده کوونکي دې لاندې پوښتنو ته ځوابونه ووايي:

- سيد بهاو الدين مجروح کوم کتابونه ليکلي دي؟
- مجروح په کومه ښانګه کې زده کړې کړې وې؟
- د سيد بهاو الدين مجروح کومې منظومې پېژنئ؟
- مجروح د مهاجرت په وخت کې کومه اداره جوړه کړې وه؟

۲ـ زده کوونکي دې په وار سره د ځانځاني ښامار نمونه ولولي او هم په وار سره دې پرې خبرې وکړي.

۳ـ څو زده کوونکي دې د مجروح د ژوند په اړه خبرې وکړي. څو تنه نور زده کوونکي دې ترې پوښتنې وکړي.

٤ـ يو شمېر زده کوونکي دې د مجروح د همعصره ليکوالو نومونه واخلي او د هغو د کارونو په اړه دې خبرې وکړي.



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې په خپله خوښه له دغو موضوعګانو څخه يوه غوره او څو کرښې مقاله دې وليکي، (د مجروح ژوند، د مجروح شاعري، ځانځاني ښامار، پيغام، د وطن مور).

# عروضي نظمونه




کله چې د پښتو شعر تاريخ مطالعه کوو، نو په دغو شعرونو کې دوه شعري عنعنې ګورو. يوه د پښتو د خپلو ملي شعرونو او اوزانو عنعنه ده او بله هم د شرقي شاعرۍ عنعنه. د شرقي شاعرۍ د عنعنې په تعقيب چې پښتنو شاعرانو کوم شعري ډولونه خپل کړي دي، په هغو کې قصيده، غزل، قطعه، رباعي، مثنوي، مخمس، مسدس، مسبع، مثمن، معشر، ترکيب بند، ترجيع بند او نور دي.

په تېر لوست کې مو د ملي اوزانو يا ملي نظمونو په اړه يو لوست ولوست. دادی په دې لوست کې تاسې ته د شرقي شاعرۍ د عنعنې ځينې ډولونه درپېژنو چې په پښتو شاعرۍ کې دود دي. دغو شعرونو ته مشترک نظمونه هم وايي، ځکه چې په عربي، فارسي او پښتو کې مشترک ويل شوي او ويل کېږي.

ـ تاسې د ديواني نظمونو په اړه څه معلومات لرئ؟

ـ د ديواني نظمونو کوم ډولونه پېژنئ؟ په اړه يې خبرې وکړئ.

۱ـ غزل: عربي لفظ دی او معنا یې له ښځو سره خبرې کول دي. د نظم له هغو ډولونو څخه دی چې په ټولو دیوانونو کې زیاته برخه لري. د غزل لومړي بیت ته مطلع وایي. د مطلع دواړه مسرۍ او د نورو بیتونو دوهمې مسرۍ یو له بله سره په قافیه کې یو شی دي او په وزن کې د غزل ټولې مسرۍ سره برابرې وي. د بیتونو شمېر یې له پنځو څخه نیولی بیا تر پنځلسو پورې رسېږي. غزل که څه هم په ډېرو موضوعاتو کې ویل کېږي خو اکثره عشقي وي. په اوسني غزل کې د ژوندانه نور مسایل هم بیانېږي او له پخوا څخه یې توپیر موندلی دی.

چې دې وګوري ومخ ته وطن پرېږدي
وطن څه دی چې روح والوزي تن پرېږدي
که څښتن وي د تومنو ستا په مینه
دروېزه کاندې اختیاره تومن پرېږدي
بلبلان که دې له حسنه خبردار شي
ستا د مخ په ننداره به چمن پرېږدي
څه خو مخ و بتخانې و ته جار باسه
چې د بتو پرستش برهمن پرېږدي
ښه چې زړه مې مسافر شو ستا په لورې
عقیق لاشي قیمتي چې وطن پرېږدي
د جفا د مړو ژوند څه وي حسینه
که د جور خوی زما ګلبدن پرېږدي

۲ـ بولله (قصیده): یو ډول شعر دی چې په عربي کې ورته قصیده وایي. په قصیده کې ډول، ډول اوږده مضامین ویل کېږي. د بیتونو شمېر یې له شپاړسو څخه نیولی بیا تر دوو سوو پورې رسېږي. قصیده هم د غزلې په څېر یوه مطلع او یوه مقطع لري. د غزلې په شان د لومړي بیت دواړه مسرې او د نورو بیتونو د دوهمې مسرې قافیه یو له بله سره یو شی وي. په وزن کې ټولې مسرې سره برابرې وي. ځینې قصیدې درې برخې لري، لکه: تشبیب یا

تغزل، گریز یا مخلص، دعائیه یا حسن طلب.

تشبیب یا تغزل له اصلي موضوع څخه د مخه یوه مقدمه ده چې د بهار او یا مناظرو ستاینه ده.

گریز د قصیدې دویمه برخه ده چې شاعر ستاینه پرېږدي او اصلي موضوع ته راځي. دعائیه د قصیدې دریمه برخه ده. شاعر په دې برخه کې دعا کوي. د قصیدې موضوعات، ستاینه، موعظه، گیله، غندنه او اخلاق وي. د قصیدې دعائیه برخه په اصلي موضوع پورې اړه لري او د موضوع اړوند دعا کېږي.

دلته به د نمونې په توگه د خوشحال خان خټک د یوې قصیدې څو بیتونه ولولئ:

درتــه وښــیم کــیمــیا د ســعــادت
لــه بــدانــو ســره مــه کــوه صحبت
مه بد گوی، مه بد آموز، مه بد اندېش شه
کـه دې زړه وي چـې درنـه رسـي آفت
کـه لـویـي غــوارې ځــان کـم گـڼـه تـر بله
بــل تــر دا د پــاســه نــشــتـه نصیحت
پـه دوسـتـانو تلطف کـړه خـو پـه تـا شي
لــه دښــمــن ســره هــم ښــه کــوه خلقت
د نیکخوا خبـره نـغوږه پـرې عـمـل کړه
نـانـغـوتـانـو تـه تـیـار دی نـدامـت
د لـمـانـځـه تـر قـضـا گـرانـه دا قـضـا ده
چـې قـضـا شـي د څـلـورو مصلحت
نـورانـي کـا هـغـه ځـای چـې سـره کښېني
دیـریـنـه څـلـور هـوښـیـار پـه مـشـورت
په اخـلاص چې په دعـا لاسونه هسک کا
ور بـه پـرانـیـت شـي د فتحې د نصرت

چې کالي يې پاتې نشي مرده شوی ته
خدايه ورکړې و خوشحال هسې رحلت

۳_ رباعي: رباعي هغه دوه بيتونه دي چې د لومړي بيت دوې مسرې د دويم بيت له دويمې مسرې سره په قافيه کې يو شی وي. د رباعي معنا څلوريزه ده. دا رباعي د پښتو له رباعي سره چې ځانګړی وزن لري، توپير لري.

طامع همېش وي په انتظار کې
آب يې د مخ ځي په هر دربار کې
ګنج چې د صبر پير محمد بيا مونډ
توانګر باله شي په دا ديار کې

٤_ قطعه: دوه يا تر دوو زيات بيتونه دي چې د لومړي بيت د دوو مسرو قافيه سره يو شی نه وي خو د بيتونو دويمې مسرې يو ډول قافيه لري، لکه:

اندېښنه که په غره کېږدې
غر به هم لکه وېښته کا
خوار سړی ملامت نه دی
که په غم کې ځان اوبه کا

۵_ مثنوي: په مثنوي کې ټول بيتونه يو ډول قافيه نه لري، خو د هر بيت د دواړو مسرو قافيه يې يو شی وي. د بيتونو شمېر يې ټاکلې اندازه نه لري، بلکې د موضوع په اوږدوالي او لنډوالي پورې اړه لري. په مثنوي کې د رزم، بزم داستانونه او تصوفي موضوعات بيانېږي.

دلته د نمونې په ډول د قيام الدين خادم څو بيتونه راوړو:

اې د پاک وطن فرزنده
اې د قام خوږه دلبنده
اې د نوي ژوند پيغامه
اې ارزو د وطن قامه
سبا ته مسوول د کار يې

که ته مور او که ته پلار یې
علم هر چا له په کار دی
نه چې تش د نرو کار دی
ښځه نر دواړه مسوول دي
خو په ښه عمل مقبول دي
د حیات په هنګامه کې
د ژوندون په افسانه کې
دواړه یو بل ته محتاج دي
یو و بل ته د سر تاج دي
یو چې بل ورنه جدا شي
لکه مات چې لاس د چا شي
زموږ خویندو شئ بیدارې
له خپل ځانه خبردارې
قام زبون دی وطن خوار دی
دا زموږ لپاره عار دی
لرې، لرې دا ظلمت کړئ
له وطنه جهالت کړئ
جهان واړه په موږ خاندي
مسخرې راپورې کاندي
نه خبر موږه له ځان یو
نه له حاله د جهان یو

۷ـ مربع: یو ډول شعر دی چې بند یې دوه، دوه بیته وي. د سر په دوو بیتونو کې څلور مسرې یو ډول قافیه لري. وروسته په هرو دوو بیتونو کې لومړۍ درې مسرې په قافیه کې یو ډول او څلورمه مسره یې د سر د بیتونو سره یو ډول قافیه لري. د شعر تر پایه پکې دا

جوړښت په نظر کې نیول کېږي. د پیر محمد کاکړ د مربع څو بیتونه د نمونې په ډول دلته راوړو:

زړه مې نادان و د مینې غل شو
فراق یې اور و رابانـدې بل شو
راحت مې واړه په غم بدل شو
اوښـې سیلاب دي صورت مې شل شو

**

زیبا نگار چې زه راپـه یاد کـړم
لـه درد و غمه آه و فریاد کـړم
قبول حیران یم د چا ارشاد کـړم
ببل لـه ما خـواره د لارې مل شو

**

عمر مې صرف شو په معصیت کې
شاکر یې نشو په هېڅ نعمت کې
اوس صبح و شام یو په دا حیرت کې
مقبول به خدای ته په کوم عمل شو

۸ـ مستزاد: هغه شعر دی چې یوه مسره یې اوږده او بله یې لنډه وي.

| | |
|---|---|
| نه غوږ لرم چې واورم نه په خوله د خیر ویل کړم | مدام منت پر بل کـړم |
| چې قهر راشي عقل مې مغلوب شي نو ښکنځل کړم | مدام منت پر بل کـړم |
| که هر څو کتابونه رنگ په رنگ و ځانته ډېر کړم | اوښـه یـې تـر نظر تېر کړم |
| راپېښـه بدبختـي ده چـې یـوه زره عمـل کـړم | مدام منت پر بل کـړم |

لنډه مسره همېشه یو ډول نه وي کله تکرارېږي او کله مختلفه وي.

۹ـ مخمس: د مخمس هر بند له سره تر پایه پورې پنځه، پنځه مسرې لري. لومړۍ پنځه مسرې یو ډول قافیه لري. په نورو بندونو کې لومړۍ څلور مسرې یو له بله په قافیه کې یو ډول وي، خو پنځمه مسره یې د پیل له لومړنیو پنځو مسرو سره یو ډول قافیه لري او تر پایه دغه جوړښت ساتي. د حمید مومند د مخمس څو بیتونه:

د هجران د لاسه ناست یم ویر ژړلی	لکه بت په غټو سترګو دم ختلی
بېهوده په صورت روغ په زړه نتلی	بېلتانه په مرګي حال یم رسولی
ربه راولې اشنا په سفر تللی

**

یا له یار سره ولاړ وای په رکاب کې	یا یې مړ وای د هجران په اول تاب کې
یا وای ډوب مدام د اوښکو په سیلاب کې	حساب نشوم د یوې چارې په باب کې
هسې پاتې شوم بې آبه مخ ناولی

۱۰ـ مسدس: د دې شعر هر بند شپږ شپږ مسرې لري. لومړۍ شپږ مسرې یې یو ډول قافیه لري. په نورو بندونو کې لومړۍ پنځه مسرې یو له بله په قافیه کې یو شی وي، خو د شپږمې مسرې قافیه د لومړیو شپږو مسرو پر قافیه باندې بنا کېږي.

د شمس الدین کاکړ د مسدس څو بیتونه د نمونې په ډول:

وخت د سحر دی مرغان چغېږي	جرس اواز کا زړه مې لړزېږي
سترګې مې غورزي بانه رېږي	اثر د غم دې رامعلومېږي
کوم بد خبر به راورسېږي
د یار د تللو خبرې کېږي

دا څه عشق نه دی واړه ټګي ده	دا صدق نه دی منافقي ده
دا اخلاص نه دی دغه بازي ده	دا یاري نه ده دا بیزاري ده
چې پر یار غم دی پرما ښادي ده
بې حیا زړه دې زما وشرمېږي

د جدایي سـندرې وایم | په سفر تللی اشنا به ستایم
---|---
که ملامت یم کـه بېنوا یم | بیا یې د وصـل په تمنا یم

زه شمس الدین یې په دا دعا یم

چې یار به کلـه بیا ورسـېږي

مسبع، مثمن او معشر هم دغه ډول اشعار دي، خو د مسرو په شمېر کې توپیر لري. په مسبع کې اوه، په مثمن کې اته او په معشر کې لس مسرې وي. د سر په بند کې د ټولو مسرو قافیه یو ډول وي او په نورو بندونو کې نورې مسرې یو له بل سره په قافیه کې یو ډول وي، خو د پای د مسرې قافیه د سر د مسرو پر قافیه بنا کېږي.

۱۱ـ ترجیع بند: د نظم هغه ډول دی چې قافیې یې مختلفې او وزن یې یو ډول وي. د بندونو شمېر یې نه دی ټاکل شوی. د هر یو بند د بیتونو شمېر یې په خپلو کې مساوي وي او له پنځو څخه تر لسو بیتونو پورې رسېږي. کله تر دې هم زیاتېږي.

د هر بند په آخر کې یو بیت راځي چې د بند د ټولو بیتونو سره په وزن کې یو شان وي. مگر ځانگړې قافیه لري چې همدغه بیت د هر بند په پای کې تکرارېږي.

دلته د خوشحال خان خټک د ترجیع بند څو بیتونه د نمونې په ډول راوړل شوي دي:

ستا له لوریه که هـزار جور و جفا وي | له عاشقه به په سل رنگه وفا وي
---|---
په عـاشـق بـانـدې معشوقه عنایت کا | ستا مدام په خپل عاشق باندې عنا وي
ښـه مـا ومنل چـې تـه بـې حـد زیبا یې | په جهان به کوم څوک تا غوندې زیبا وي
ولې خدای چې ښه جمال و چاته ورکا | نه په دا چې دی بې مهره کبریا وي
که قضا په ما زړه سوی کا هم به ومرم | که یو څو ورځې د جنگ و فتنې دا وي
که سل ما سره غوغا جنگ و جدل کړې | خدای دې نه کا چې له تا به تله زما وي

ستا د در په خاورو پروت بې قدره ښه یم

په بل لورې که په تخت کښېنم ښه نه یم

۱۲ـ ترکیب بند: د ترجیع بند غوندې شعر دی خو په دومره توپیر چې په ترجیع بند کې چې کوم بیت له هر بند څخه وروسته راځي، تکرارېږي، خو په ترکیب بند کې تر بند وروسته یو بیل بیت راځي چې بېله قافیه او بېله معنا لري. د حمید مومند د ترکیب بند څو بیتونه د نمونې په ډول راوړو:

په منزل به یې سباګوره څوك مله وي — نه پوهېږم چې به ساد وي که به غـله وي
په څه شان به شکسته زهیر په زړه وي — له نغمې به یې د زړه نغمـه په خـوله وي
دم قـــدم به یې خولې د مخ په وله وي — رانجه کړي به یې چـــا خاورې د پله وي

ســـزاوار د هـــــر ستم د هر پیغور یم
چې مې یار په سفر تللی زه پر کور یم

**

یا لـــه یاره سره تللی په سفر وای — پـه هــر ځــای مې غورولی پرې وزر وای
یـا یې مړ د بېلتانه له غمه ژر وای — یــا په دوارو سترګو تېپ روند په نظـر وای
کـه دا نه کېدای هرګزه معتزر وای — خود په خود مې ځان وهلی په خنجر وای

هسې پاتې شوم تر یار پورې مخ توری
په جـــرګـــه د عـاشقانو کې کوز ګوری

د متن لنډیز:

مشترك نظمونه هغه دي چې په عربي، فارسي او پښتو کې ویل کېږي. دغه شعرونه ځانته ځانګړې ډولونه او وزنونه لري.

په دې ډولونو کې غزل، قصیده، رباعي، قطعه، مثنوي، مستزاد، مخمس، مسدس، مسبع، مثمن او معشر راځي. د پښتو په کلاسیکه دیواني شاعرۍ کې دغه ټول ډولونه شته او پښتنو شاعرانو دغه ډولونه کارولي دي. قصیده، مثنوي، غزل په لرغوني دوره کې په پښتو شاعرۍ کې پیل شول او بیا دې نورو ډولونو په منځنۍ دوره کې زیات رواج وموند. په اوسنۍ یا معاصره دوره کې اوس دغه ډولونه دومره نه کارول کېږي، ځکه چې اوس معاصر شعر د ژوند موضوعاتو ته وقف دی او اوسني شاعران زیات په شکلیاتو او صنعتونو پسې نه ګرځي.



## فعالیتونه

١ـ زده کوونکي دې متن په چوپه خوله ولولي او بیا دې لاندې پوښتنې ځواب کړي:

- په پښتو کې کوم نظمونه پېژنئ؟
- ملي نظمونه څه ته وايي؟
- مشترك نظمونه کوم دي؟
- د مشترکو نظمونو او ملي نظمونو توپیر څه دی؟

٢ـ څو زده کوونکي دې په وار سره په قصیده، غزل او مثنوي خبرې وکړي. ښوونکي دې د ضرورت په وخت ددوی لارښوونه وکړي.

٣ـ زده کوونکي دې په متن کې راغلي شعرونه په وار سره ولولي، یو زده کوونکی دې د یوه شعر مفهوم او بل دې د بل شعر مفهوم په خپلو خبرو کې څرګند کړي.

٤ـ زده کوونکي دې د خپلې خوښې د یو شعري ډول په اړه څو کرښې په خپله کتابچه کې ولیکي، دلایل دې روښانه کړي او بیا دې خپله لیکنه په وار سره په ټولګي کې واوروي.

٥ـ زده کوونکي دې په وار سره په دې اړه خبرې وکړي چې په لرغوني دوره کې کومو شاعرانو له دغو شعري ډولونو څخه ځینې کارولي وو؟

٦ـ زده کوونکي دې لاندې لغتونه د کتاب له پای څخه معنا او په جملو کې وکاروي:

تومن، برهمن، تلطف، نغوره، ندامت، نانغتان، نصرت، رحلت، ګنج، عار، ظلمت، ارشاد، معصیت، نتلی، دم ختلی، جرس، عنا، عنایت، جمال، کبریا، ساد، معتزر



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د شعرونو ددغو ډولونو څخه په خپله خوښه یو ډول غوره او له کلاسیکو دیوانونو څخه دې رانقل کړي. د شعر معنا او مفهوم دې هم ولیکي او په بل پښتو درسي ساعت کې دې ولولي.



# پښتو هنري نثر

که څه هم د يوې ژبې ټول ليکلي او ناليکلي شفاهي منظوم او منثور آثار ادبيات ګڼل کېږي خو اوس هر ډول ليکنې په ادبياتو کې نه شمېرل کېږي، يوازې هغه آثار د ادبياتو تر عنوان لاندې مطالعه کېږي چې هنري ارزښت ولري. د بېلګې په توګه هر منثور اثر چې د علومو او فنونو په بېلابېلو څانګو کې ليکل شوي وي او يا هر نظم او منثور اثر چې د تاريخ، جغرافيه، طب او نورو علومو تشريح ته وقف وي، په ادبياتو کې نه شمېرل کېږي. هغو ليکنو ته ادبي هنري ويل کېږي چې له تخيله رازېږېدلي وي او د ژوند واقعيتونه په هنري ډول منعکس کړي. پر لوستونکي او اورېدونکي خپل خاص اغېز وکړي او د هغه هنري ذوق تسکين کړي. هنري اثر بايد په داسې يو ژبني چوکاټ کې بيان شوی وي چې هم د ټولنيز ژوند هنداره وي او هم په لوستونکي او اورېدونکي کې يو عاطفي احساس پيدا کړي او ښکلاييز ارزښت ولري. هنري نثر هم د هنري ادبياتو يوه مهمه برخه ده چې د هنري ادبياتو د ټولو نثري ډولونو لپاره کارول کېږي، لکه: لنډه کيسه، ناول، طنز، ډرامه، ادبي ټوټه او نور... په دې لوست کې به د هنري نثر په اړه معلومات ولولئ.

ــ هنري نثر څه ته وايي؟

ــ هنري نثر له عادي نثره څه توپير لري؟

هنري نثرونه د ادبياتو يوه برخه ده. د نړۍ د ټولو ژبو په ادبياتو کې کارول کېږي. په پښتو

ادبیاتو کې د شلمې پېړۍ په لومړیو شلو کالو کې پیل شو او تراوسه کارول کېږي. هنري نثرونه خپلې ځانګړنې لري چې د همدغو ځانګړنو له مخې له عادي او ساده نثرونو څخه جلا کېږي. د هنري نثر اصلي ځانګړتیا داده چې هنریت او ادبي ارزښت ولري. په هنري نثر کې لیکوال د بېلابېلو منظرو، انساني ټاکلو خصوصیاتو، روحیاتو، عاداتو او حالاتو په انځورونو کې له خپل تخیلي ځواک څخه کار اخلي.

لیکوال د تخیلي ځواک په مرسته او د لیکوالۍ د مهارتونو په وسیله د منظرونو د انځورولو او صحنو جوړولو چاره سرته رسوي. حالات او پېښې په الفاظو کې داسې انځوروي چې لوستونکی او اورېدونکی فکر کوي چې هر څه په خپلو سترګوویني او ځان ورته په صحنه کې دننه ښکاري.

په هنري نثر کې د لیکوال په مهارت پورې اړه لري چې د خلکو هیلې، غوښتنې، جذبات، عواطف او احساسات لکه څنګه چې دي په ښکلو الفاظو کې راونغاړي او مقابل لوري ته یې ولېږدوي. دغه لېږدونه باید د مقابل لوري په عواطفو کې خوځښت راولي. په هنري نثرونو کې د لیکوال تخیل، د مناسبو او ښکلو کلمو استعمال، د تشبیهاتو راوړل، د جملو رواني او د مقصد څرګند بیان شرط دی. لیکوال باید د الفاظو داسې برجونه او یا کتارونه جوړ نه کړي چې لوستونکی پکې مقصد ونه مومي.

د الفاظو او جملو له ښکلا سره محتوا ته هم پاملرنه وکړي او د شکل او محتوا توازن داسې په پام کې وساتي چې یوه خوا هم زیانمنه نه شي.

هنري نثر د هنري ادبیاتو ژبه ده او د یو هنري اثر په ښکلا کې بنسټیز ارزښت لري. پښتو هنري نثر د پښتنو په دوو مرکزونو پېښور او کندهار کې رامنځته شو. په کابل کې یې هم وده او پراختیا ومونده.

څرګنده دې وي چې پښتو هنري نثر په لومړي ځل په پېښور کې رامنځته شو. په پېښور کې د پښتو کتابونه، ملي نکلونه او نور ادبي آثار چاپېدل. پښتنو لیکوالو خپل لومړني هنري نثري آثار په پښتو ژبه لیکل. په دغو لیکوالو کې مولوي احمد د پښتو هنري نثر په مخکښو لیکوالو کې په ځانګړي ډول د یادونې وړ ځای لري.

ده په نولسمه پېړۍ کې د هغو انګرېزانو لپاره چې غوښتل یې پښتو ژبه زده کړي ځینې

تعلیمي کتابونه ترتیبول. ده په پښتو کې له نورو ژبو څخه ترجمې کړي او هم یې مستقل آثار لیکلي دي. د ده تر ټولو غوره اثر چې د هنري نثرونو نمایندهګي کوي (ګنج پښتو) دی. په دې اثر کې ورې ورې کیسې راغلي چې ځینې ترجمې او ځینې ده پخپله لیکلي دي.

د ده د کتاب موضوعات ساده او اسان دي. ژبه یې خوږه او محاورې ته نژدې ده.

ژبني اصطلاحات یې هم کارولي دي. ده پخپلو کیسو کې د ژوند موضوعاتو ته پاملرنه کړې ده. د ده دغه کار د پښتو هنري نثر په انکشاف او پراختیا کې ډېر ارزښت لري.

په ده پسې بل پښتون لیکوال میر احمد شاه رضواني (۱۸۶۳-۱۹۳۷م.) دی. ده هم لکه د مولوي احمد ژباړې کولې. ده د پښتو ژبې ګرامر ولیکه او د پنجاب په پوهنتون کې د پښتو ژبې استاد و. د ده په کتابونو کې د پښتو ژبې دوه درسي کتابونه د یادولو وړ دي. د هنري نثرونو غوره بېلګه یې د (شکرستان افغاني) په نامه یادېږي. د ده دغه کتاب هم د وړو، وړو کیسو او حکایتونو مجموعه ده.

بل لیکوال چې په هنري نثر کې یې د پاملرنې وړ کارونه کړي دي، هغه منشي احمد جان (۱۸۸۲- ۱۹۵۱م) دی. دی د بنو په ښار کې زېږېدلی دی. انګلیسي ژبه یې زده کړه او په (۱۹۰۰م) کال کې د انګرېزانو د پښتو ښوونکی شو. د ده په شاګردانو کې د هند د وایسرای معاون هم و. ده د پښتو ژبې لپاره قاموسونه ولیکل. د شلمې پېړۍ په لومړیو کلونو کې یې د هنري نثر په لیکلو پیل وکړ.

دوه مجموعې (هغه دغه) او د (قصه خوانۍ ګپ) یې د هنري نثر خورا ښې بېلګې دي. دا کتابونه ورې کیسې او حکایتونه لري. دا کتاب هم په هند کې د پوځي منصبدارانو لپاره لیکل شوی دی. د قصه خوانۍ ګپ موضوعات فولکلوري دي لکه د آدم خان درخانۍ، د فرهاد او شیرینۍ کیسه او نورې...

په افغانستان کې هم د شلمې پېړۍ په لومړیو کلونو کې هنري نثر پیلېږي. په دغو کلونو کې د ښوونځیو په رامنځته کېدو، د جریدو او اخبارونو په خپرېدو، د راډیو په رامنځ ته کېدو د هنري نثر لیکلو ته لاره هوارېږي، د پښتو مرکې، د ادبي انجمن او بیا د پښتو ټولنې په جوړېدو سره هنري نثر انکشاف او پراختیا مومي.

لومړنی لیکوال چې حکایتي او تعلیمي نثرونه لیکي، هغه صالح محمد هوتک دی چې په (۱۹۱٦م) کال کې یې د پښتو لومړی کتاب ولیکه.

وروسته قیام الدین خادم، گل پاچا الفت، صدیق الله رښتین، عبدالرؤف بېنوا او محمد دین ژواک، د هنري نثرونو لیکلو ته پراختیا ورکړه او د نورو لیکوالو پاملرنه یې هم دې ډگر ته راواړوله. گل پاچا الفت او صدیق الله رښتین په دې برخه کې ډېر کتابونه ولیکل، لکه د الفت غوره نثرونه، د رښتین د پسرلي وږمې، د خادم خیالي دنیا او د بېنوا د زړه خواله د یادولو وړ کتابونه دي.

په کوزه پښتونخوا کې سید راحت زاخیلي هنري نثر ته پراختیا ورکړه او د نوي داستاني ادب نمونې لکه لنډه کیسه، ناول او طنز یې په پښتو ادب کې رواج کړل. دلته به د نمونې په توگه د بېنوا یو نثر راوړو:

## لاربشوونکی

له فریب او دروه سره نا اشنا وم. مکر او چل مې زړه ته لاره نه درلوده. دروغ مې نه پېژندل. د ژوندون د لویې لارې مسافر وم. له پرېشانه خوبه راپاڅېدم. قافله ډېره پرمخ تللې وه. یوازې زه وم چې د لاربشوونکي په انتظار مې لویې لارې کتلې. ډېر راغلل، تېر شول مگر یوه هم د زړه سوي په سترگو راته ونه کتل. ځینو به د گوتو په اشارو لار راوښودله، خو د گوتو د اشارو لارې ډېرې اوږدې وې.

ځینو به د دې لپاره چې ځانونه په ما وساتي، زه به یې له ځان سره روان کړم، خو چې خطر به تېر شو نو بېرته به یې زه پر لویه لاره پرېښودلم. دوی به لاړل. همداسې د لاربشوونکي په انتظار د ژوندون په لویه لار کې ولاړ وم. څو ته راغلې. زه دې تر لاس ونیولم. زه هم په پاک زړه په تا پسې روان شوم او د لارې د موندلو په غرض مې ستا لمنه ټینگه کړه. هرې خواته به چې تلې، درپسې تلم او تا هم ماته د لار موندلو ډاډ راکاوه. ناڅاپه! موسمي توره وربځ پیدا شوه، باران او ږلۍ وربدل شروع شول.

آسمان او ځمکه په خروش راغلل، لارې گډې وډې شولې، خو زه ډاډه وم چې تا

غونډې لاربښوونکی لرم او تاته مې سترګې وې چې د زمانې په دې توره دربیله کې به لار راوښیې.

مګر په هماغه حال کې تا په ډېرې حیرانتیا مخ راواړاوه او له ما څخه دې پوښتنه وکړه چې:

(اې مسافره لار راوښیه، لاره کومه ده؟)

هغه وخت نو زه پوه شوم چې زما د ژوند د لارې لاربښوونکی یوازې زه یم او باید زه پخپله خپله لاربښوونه وکړم.

د متن لنډیز:

هنري نثر د شلمې پېړۍ په لومړیو کلونو کې په کوزه پښتونخوا او افغانستان کې پیل شو. په کوزه پښتونخوا کې یې سرلاري مولوي احمد، میر احمد شاه رضواني، منشي احمد جان او راحت زاخیلی وو. په افغانستان کې یې مخکښه لیکوال صالح محمد هوتک، پوهاند عبدالحی حبیبي، قیام الدین خادم، ګل پاچا الفت، صدیق الله رښتین، عبدالرؤف بېنوا، محمد دین ژواک او نور وو.

وروسته لر او بر نور لیکوال راپیدا شول او په نثر کې یې ډېرې هستونې وکړې. هنري نثر له عادي او ساده نثر نه توپیر لري. په هنري نثر کې لیکوال له خپل تخیل نه ډېر کار اخلي. نېغ په نېغه ساده خبره نه کوي، بلکې خپله خبره په ښکلو کلماتو او تشبهاتو کې رانغاړي چې د لوستونکو په عاطفه او احساس ژوره اغېزه کوي، هنري نثر د لنډې کیسې، ناول، ډرامې، طنز، تکل او ادبي ټوټې لپاره کارول کېږي. د لاربښوونکي نثر هم یو هنري نثر دی چې د خپل مطلب د بیان لپاره له ښکلو کلماتو او تشبهاتو څخه کار اخلي.

په دې نثر کې ښودل شوي چې هر سړی د خپل ځان رهبر او لاربښوونکی دی. د نثر مقصد دادی چې د لاربښوونکي په ټاکلو کې باید له ډېر دقت او غور څخه کار واخیستل شي او په غولوونکو لاربښوونکو وانه وړي او نه ځان تېر باسي.



## فعالیتونه

۱ــ زده کوونکي دې د متن له لوستلو څخه وروسته دا لاندې پوښتنې ځواب کړي:

- پښتو هنري نثر څه وخت، چېرته او د چا له خوا پيل شو؟
- په کوزه پښتونخوا کې د هنري نثر مشهور ليکوال کوم وو؟
- په افغانستان کې د هنري نثر لومړني ليکوال څوک وو؟
- د هنري نثرونو د څو کتابونو نومونه واخلئ؟

۲ــ که کوم زده کوونکی د هنري نثر کوم ليکوال پېژني، د هغه په اړه دې خپلو ټولګيوالو ته معلومات ورکړي.

۳ــ زده کوونکي دې د لارښوونکي متن په وار سره ولولي، خبرې دې پرې وکړي او خپل نظر دې پرې څرګند کړي.

٤ــ زده کوونکي دې د يوه ښه لارښوونکي خصلتونه او صفتونه په څو کرښو کې وليکي او بيا دې په وار سره په ټولګي کې واوروي.

٥ــ زده کوونکي دې د هنري نثر او ساده نثر توپيرونه وښئي، ښوونکی دې د ضرورت په وخت کې له دوی سره مرسته وکړي.

٦ــ هنري نثر د کومو ادبي ډولونو لپاره کارېږي، نومونه يې واخلئ؟



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د کورنۍ د غړيو په مرسته او يا له کوم کتاب څخه هنري نثر وليکي او په بله ورځ دې په پښتو درسي ساعت کې ولولي.

# د پښتو ادبیاتو لرغوني دوره



تاسې د ادبي دورو په هکله څومره معلومات لرئ؟

ملتونه د سیاسي تاریخونو ترڅنګه ادبي تاریخونه هم لري چې د یوه ملت فرهنګي او ادبي پېژندنه کوي. ادبي تاریخونه په بېلابېلو دورو وېشل کېږي چې د پښتو ژبې ادبي تاریخ هم د پوهانو له خوا په درې دورو وېشل شوی دی. لرغونې دوره، منځنۍ دوره، اوسنۍ یا معاصره دوره. دادی په دې لوست کې تاسې ته لرغوني دوره درپېژنو چې پښتو ادب له کوم وخت څخه پیل شوی او لرغوني دوره کومې ځانګړتیاوې لري.

ـ د پښتو ادب لرغونې دوره څه وخت پیل شوې ده؟

د پښتو ادبیاتو لرغونې دوره له دویمې هجري پېړۍ څخه پیلېږي او د یوولسمې پېړۍ تر لومړیو کلونو پورې دوام کوي. د پښتو ادبیاتو د لرغوني دورې آثار د پښتنو په دریو مرکزونو (غور، د کسي غر او ملتان) کې رامنځته شوي دي. په غور کې غوري پښتانه اوسېدل. د غور له پاچاهي کورنیو څخه یوه د غور سوري شاهي کورنۍ وه چې په تاریخونو کې د شنسبانیانو په نامه مشهوره وه. د دې کورنۍ یو مشر نیکه شنسب (شین اسپ) نومېده چې د پلار نوم یې خرنگ و. دا شنسب د حضرت علي رضي الله عنه په زمانه کې مسلمان شوی او د غور پاچا منل شوی و. د شنسب زوی امیر پولاد و. هغه وخت چې ابو مسلم مرزوي د بني امیه امیران له خراسان څخه شړل او د بني عباس په پلوۍ ودرېد نو امیر پولاد له خپلو لښکرو سره د ده ملاتړ وکړ.

د امیر پولاد د پاچاهۍ مرکز د غور په مندېش کې و. په پټه خزانه کې راغلي دي چې د امیر پولاد تر مړینې وروسته د هغه زوی امیر کروړ د غور په مندېش کې په ۱۳۹هـ کې پاچا شو. امیر کروړ د خپلې پاچاهۍ په دوران کې دوه مرکزونه درلودل چې یو یې مندېش او بل یې زمینداور و. امیر کروړ ډېر غښتلی پهلوان و چې په یوازې ځان له سلو تنو سره جنگېده. ده هم د عباسي دعوت په جنگونو کې گډون درلود او ډېرې بریاوې یې ترلاسه کړې.

امیر کروړ یو عادل پاچا و. په پښتو یې شعرونه هم ویلي دي. په ۱۵٤هـ کې د پوشنج په جگړو کې مړ شو او پر ځای یې د ده زوی امیر ناصر پاچا شو. امیر کروړ چې د خپلو سوبو په پایله کې کوم شعر ویلی دی، هغه پټې خزانې تر موږ رارسولی دی.

زه یم زمری پر دې نړۍ له ما اتل نشته
پر هند و سند و پر تخار او پر کابل نشته
بل په زابل نشته له ما اتل نشته
غشي د من مې ځي برېښنا پر میرځمنو باندې
په ژوبله یونم یرغالم پر تښتېدونو باندې
پر ماتېدونو باندې له ما اتل نشته
زما د بریو پر خول تاوېږي هسک په نمنځ او په ویاړ

د آس لــه ســوو مې زمکــه رېــږدي غرونه کانــدم لتاړ
کړم ایوادونه اوجاړ          لــه   مــا   اتــل   نســته
زمــا د تــورې تــر شــپول لانــدې دي هــرات و جروم
غــرج و بامیــان و تخــار بولــي نــوم زمــا پــه اودم
زه پېژندویم په روم          لــه   مــا   اتــل   نســته
پــر مــرو زمــا غشــي لونــي ډاري دښــن راڅخــه
د هریــوا د رود پــر څنــډو ځــم تښــتي پلــن راڅخــه
رېي زړن راڅخه          له مــا اتل نســته
د زرنــج ســوبه مــې د تــورې پــه مخســور وکــړه
پــه بــادارۍ مــې لــوړاوی د کــول د ســور وکــړه
ستر مې تربور وکړه          له مــا اتل نســته
خپلــو وګــړو لــره لــور پېرزوینــه کــوم
دوی پــه ډاډینــه ښــه بامــم ښــه یــې روزنــه کــوم
تل یې ودنه کوم          له مــا اتل نســته
پــر لویــو غرو مــې وینــا درومــي نه پــه څنډو پــه ټال
نــرۍ زمــا ده نــوم مــې بولــي پــر دریــځ ســتا یــوال
په ورځو شپو میاشتو کال          لــه مــا اتــل نســته

د امیر کروړ سوري دغه ویاړنه د پښتو تر ټولو پخوانی شعر دی چې د اسلامي عصر په دویمه هجري پېړۍ کې ویل شوی دی. د شکلي جوړښت له مخې لرغونو آریایي سندرو ته نژدېوالی لري.

په محتوا کې یوه ویاړنه ده چې د خپلو سوبو یادونه کوي او له خپلو خلکو سره د خپلې مینې اظهار هم څرګندوي. پر دې شعر د نورو ژبو تاثیرات نه لیدل کېږي او د پښتو سوچه کلمات یې استعمال کړي دي. په دغو کلماتو کې ځینې داسې کلمات هم شته چې اوس په عامه ژبه کې نه ویل کېږي.

دویم مرکز د کسي غر یا د سلیمان د غرو لمنې دي. هغه آثار چې د کسي غر په لمنو کې ایجاد شوي، له دریمې هجري پېړۍ نه پیلېږي او تر پنځمې پېړۍ پورې رسېږي.

په دغه مرکز کې نوماند شخصیت شیخ بیټنی دی چې د ژوند زمانه یې د دریمې هجري پېړۍ شاوخوا ټاکل کېدای شي. د شېخ بیټني یو مناجات سلیمان ماکو په تذکرة الاولیا کې راوړی:

لــويــه خــدايـــه، لـــويــه خـدايــه ســتــا پـــه مـيــنــه پـــه هـــر ځـايـه

غـــر ولاړ دی درنــــــاوي کې ټــولــه ژوي پـــه زاري کې

دلــتـــه دي د غــــرو لـمـنې زمـــوږ کـيـږدی دي پـکـې پلنې

دا وګـــړي ډېـــر کـــړې خــدايــه

لـــويــه خـــدايـــه، لـــويــه خــدايـه

دلــتـــه لــږ زمـــوږ اور بــل دی ووړ کـورګـی دی ووړ بـورجـل دی

مـيـنـه سـتـا کـې مــوږ مـېـشـتـه يو بـــل د چـــا پـــه مـلـه تـلـه نـــه يو

هــسـک او مـځـکـه نـغـښـتـه سـتـا ده د مـــــړو وده لــــه تـــــا ده

دا پـــالـــنـه ســـتـــا ده خـــدايــه

لـــويــه خـــدايـــه، لـــويــه خــدايـه

په دغه مرکز کې په دریمه او څلورمه هجري پېړۍ کې دوه نور شاعران هم تېر شوي چې یو یې شېخ اسماعیل او بل خرښبون دی چې په پټه خزانه او تذکرة الاولیا کې یې د شعر نمونې راغلي دي.

کله چې خرښبون خپل کور او کلی پرېږدي او روانېږي، نو شېخ اسماعیل یې په جدایی کې دا پاړکی وایي:

که یون دی یون دی مخکې بېلتون دی له کسي غره څخه ځي خرښبون دی

کـــه وروره وروره خرښبونه وروره ته چې بېلتون کړې زما ویر ته ګوره

خربښون يې په څوب کې دا ناره له خولې باسي:

بېلتانه نـاره مې وسوه په کور باندې　　نه پوهېږم چې به څه وي پېښ په وړاندې

له خپلوانو به بېلېږم په سرو سترګو　　دواړه ســترګې مې په وينـــو دي ژړاندې

دريم مرکز ملتان دی چې د اسلام په دوو لومړنيو پېړيو کې پښتانه د سليمان د غرو له لمنو څخه کوچېدلي او د سند او پنجاب لور ته تللي دي. د پنجاب په غربي برخو ملتان کې له دغو پښتنو څخه شېخ حميد لودي د ۳۷۰ هجري په شاوخوا کې له ملتان څخه نيولې تر لغمان پورې سيمو حکمران و. همدغه سړي د څلورمې هجري پېړۍ په دويمې نيمايي کې د لوديانو د حکمرانۍ بنسټ کېښود. په شېخ حميد پسې د ده زوی نصر او بيا يې لمسي داوود د ملتان د لودي کورنۍ حکمرانان وو.

د ملتان په لودي کورنۍ کې دوه تنه شاعران تېر شوي چې يو د شېخ حميد زوی نصر لودي او بل يې وراره شيخ رضي دی.

شيخ رضي د حميد لودي د پاچاهۍ په وخت کې د اسلام د مقدس دين د تبليغ لپاره پښتونخوا ته لاړ. دوه کاله د کسي غره په لمنو کې وګرځېد او ډېر خلک يې مسلمانان کړل. شېخ رضي له کسي غره څخه خپل يو شعر د ليک په ډول نصر لودي ته استولی و چې د پيل بيتونه يې دادي:

د الــحــاد پــه لــور دې تــر پلل
گـــروه دې زمـــوږ وکـــــوراوه
مـــوږ رونـــلــی پـــه زيـــارنـــه
تـــا پـــه تـــور وتـــــوراوه

کله چې دا ليک په ملتان کې نصر لودي ته ورسېد، نو هغه يې په څوب کې وويل:

د الـــحـــاد پـــه تـــور تـــورن ســوم
زه لـــرغـــون خـــو مـــلـحـد نـــه يـم
زمـــا دښـــنـــه هـــسـې تـــور راکـــړی
کـــه مـــلـحـد يـــم د دښـــنـــه يـم

شیخ رضي د خپل تره زوی ته وايي چې ته له سنت او له خپلې لارې څخه اووښتی يې خو نصر ورته په خوب کې وايي چې زه پر سنت ټينګ ولاړ يم او کوم تورونه چې پر ما لګول شوي هغه دروغ دي.

د ملتان لودي کورنۍ د غزني له پاچاهانو سره په رقابت کې وه، مؤرخين وايي چې د غزني پاچاهانو د ځان لپاره دا بهانه ونيوله او پر لودي کورنۍ يې د الحاد تورونه ولګول او په دې توګه يې د ملتان لوديان وټکول، حال دا چې د ملتان لوديان مسلمانان وو.

په دريمه هجري پېړۍ کې په پښتو کې د نثر ليکل او ژباړه پيل شوه. ابو محمد هاشم سرواني (۲۲۳ - ۲۹۷هـ) د بست په سروان کې زېږېدلی او هلته يې ژوند کړی دی. په (۲۹٤هـ) کال عراق ته تللی او په بغداد کې يې د خپل استاد ابن خلاد سره ډېر عمر تېر کړی دی.

د هغه يو عربي شعر يې په پښتو ژباړلی چې داسې پيلېږي:

ژبـه هــم ښـه ويـنـا کـانـدي چـې يـې وينه
د خـاونـد پـه لاس کــې زر او درهـمـونـه

دا په پښتو کې د ژباړې پيل دی. ابو محمد هاشم په نثر کې يو کتاب ((د سالو وږمه)) ليکلی و چې د عربي اشعارو د فصاحت او بلاغت په اړه و.

په پنځمه هجري پېړۍ کې په پښتو ادب کې قصيده رامنځ ته شوه چې لومړنی قصيده ويونکی شيخ اسعد سوري دی. شيخ اسعد سوري د غور د پښتنو پاچاهانو په لړ کې د امير محمد سوري هم مهاله و او د هغه پر مړينه يې يوه قصيده ويلې ده چې داسې پيلېږي:

د فـلـک لــه چـــارو څــه وکـــړم کـوکـار
زمــولــوي هــر ګــل چـــې خـــانـدي پــه بـهـار
هــر غـاټـول چـې پــه بـېـديـا غـوړېـده وکـا
رېــــژوي يــې پـاڼـې کـانـدي تـــار پــه تـار

بل قصيده ويونکی شاعر ښکارندوی غوري دی چې په غزني او بست کې اوسېدلی او د سلطان شهاب الدين غوري معاصر و.

کله چې سلطان شهاب الدین د اسلام دین د خپرولو لپاره پر هند لښکرې کولې، نو دی ورسره و. ښکارندوی د سلطان شهاب الدین د سوبو په اړه یوه اوږده قصیده ویلې چې پټې خزانې خوندي کړې ده:

د پسرلي ښکلوونکي بیا کړل سینګارونه
بیا یې ولونل په غرونو کې لالونه
مځکه شنه، لاښونه شنه، لمنې شنې سوې
طیلسان زمردي واغوسته غرونه

ښکارندوی د غور اوسېدونکی او د فیروزکوه کوټوال و. دغه دواړه قصیدې په غور کې د غوري پښتنو پاچاهانو په وخت کې ویل شوي دي.

په شپږمه هجري پېړۍ کې چې د غور پښتانه پاچاهان په هند کې د اسلام د مقدس دین د خپرولو لپاره لښکرې کوي، نو د اسلام د خپرېدو په ملاتړ هم په پښتو کې شعرونه ویل شوي دي.

ملکیار غرشین چې د سلطان شهاب الدین غوري همعصره دی، کله چې سلطان شهاب الدین پر هندوستان لښکرې کوي، نو ملکیار غرشین هم ورسره دی چې یوه رزمي سندره یې په دې ډول ویلې ده:

څښتن مو مل دی اوس مو یرغل دی هېواد د بل دی
غازیانو ګورئ څښتن مو مل دی
تورې تېرې کړئ دښن مو پرې کړئ منګولې سرې کړئ
څله به تښتو څښتن مو مل دی
که ټینګ کړو زړونه په بري یونه چې زمري یونه
اسلام راځخه دی څښتن مو مل دی
غازیانو راسئ ټول شاوخوا سئ د شهاب په ملا سئ
دښن مو غوخ کړئ څښتن مو مل دی

په شپږمه هجري پېړۍ کې د مینې او محبت سندرې ویل شوي دي چې یوه نمونه یې د

شېخ تيمن کاکړ يوه عشقي سندره ده:

| | |
|---|---|
| گـهيځ رڼا د لــمر خپره شوه | زما پر کــــــور د وير ناره سوه |
| د ښلتون ورځ توره تياره سوه | ږغ سو ناځاپه چې ښلتون راغی |

په (٦١٢هـ) کې د نثر يو بل کتاب د سليمان ماکو له خوا ليکل شوی چې تذکرة الاولياء نومېږي. په دې کتاب کې يې د اولياوو او ځينو پښتنو شاعرانو احوال او د کلام نمونې راغلي دي. د دې کتاب هغه پاڼې چې زموږ په لاس کې شته، موږ ته د شيخ بيټني، شېخ اسماعيل، ملکيار غرشين او قطب الدين بختيار کاکي احوال راکوي.

د اوومې هجري پېړۍ په دريمه لسيزه کې عرفاني افکار پښتو ادب ته لاره پيدا کوي. شېخ متي د خپلو اشعارو کتاب چې (د خدای مينه) نومېږي بشپړوي.

د شېخ متي د يو مناجات څو بيتونه په دې ډول دي:

| | |
|---|---|
| زه چې څرگند په دې دنيا سوم | د ښکلي مخ په تماشا سوم |
| ستا پر جمال باندې شيدا سوم | لــه خپلې ستې راجلا سوم |

په ژړا ژاړم چې بېلتون دی

يمه پرديسی بل مې تون دی

د اوومې هجري پېړۍ په دويمه لسيزه کې (٦١٧هـ) زموږ پر هېواد د چنگېز حملې پيلېږي. د چنگېز او د ده د اولادونو د حملو پر وړاندې د مقاومت موضوع په پښتو شعر کې پيلېږي. په دغه وخت کې موږ د بابا هوتک يوه سندره لرو چې د مقاومت خورا ډېره په زړه پورې نمونه ده.

د مغلو لښکرو به د ارغنداو پر غاړو لوټ کاوه. د اتغر او بولان سيمې به يې لوټلې. بابا هوتک خپل خلک راټول کړل او سره غر ته نژدې يې له مغلو سره سخت جنگ وکړ. په دې جنگ کې پښتانه لږ او غليم ډېر و، خو کله چې بابا هوتک په لوړ غږ دا سندره وويله، نو سوبه د پښتنو په نصيب شوه.

بابا هوتک د بارو زوی په (٦٦١هـ) د کلات په اتغر کې زېږېدلی، د خپل قوم مشر و، په (٧٤٠هـ) کال وفات شوی دی، د شعر يوه برخه يې داسې ده:

پـر سـورغـر بـل راتـه نـن اور دی | وگـړیـه جـوړ راتـه پـیـغـور دی
پـر کـلـي کـور بـانـدې مـغـل راغـی | هـم پـه غـزنـي هـم پـه کـابـل راغـی
غښتليو ننگ کړئ دا مو وار دی | مـغـل راغـلـی پـه تـلـوار دی
پـه پـښـتـونـخـوا کـې يـې نـاتـار دی | پـر کـلـي کـور بـانـدې مـغـل راغـی

د اتمې هجري پېړۍ په دويمه نيمايي کې نور شعري ډولونه په پښتو ادب کې راڅرگندېږي لکه غزل او مثنوي چې په دغه وخت کې د اکبر زميداوري له خوا ويل کېږي:

د مثنوي نمونه يې داده:

زه عـاشـق يـم يـار هـم نـيـز | نـور څـه لـرو تـمـيـز
يـو پـر بـلـه عـاشـقـان يـو | پـه خـپـل عـشـق کـې صـادقـان يـو
يـو پـه بـل پـسـې رنـځـور يـو | چـې نـژدې نـه يـو مـهـجـور يـو
عـشـق کـه ښـه دی کـه بـلا دی | پـيـدا کـړی زمـوږ مـولا دی

د اکبر زميداوري د غزلې يوه برخه داده:

د خپل ځان له حيرانۍ څه ويل کړم | د عشق وير به تل پخپله پټول کړم
مـا مـدام لکه بـورا پـر گلو گشت کړ | اوس به ځم په سرتور سر فراق د گل کړم
د غماز لړمون به زه په لمبه کېږدم | ځيني هېر به د يار بزم گل او مل کړم
زما د يار د مينې اور په زړه کې بل دی | زه به سر و مال ښندم ديد به حاصل کړم

د ببلتون له ويره ژاړم اوښکې وينې
زه اکبر په خپل اشنا د سرښندل کړم

په نهمه هجري پېړۍ کې په پښتو شاعرۍ کې رباعي پيلېږي چې د لومړنيو رباعيو ويونکي خليل خان نيازی او سلطان بهلول لودي دی. سلطان بهلول (۸۵۰- ۸۹۴هـ) په ډهلي کې افغان پاچا و. په دربار کې به يې شاعران او عالمان پالل. پخپله هم شاعر و. خليل خان نيازی د ده د دربار شاعر و چې دا رباعي يې ويلې ده:

خـــرې وربـځې ژاړي لـــه پاسه کـــويله رږغ کا بېلتون له لاسه

يه هغه لوني گوهر په خول ستا دا مـرحبا کا ستا زموږ مواسه

د خليل خان نيازي په څواب کې سلطان بهلول لودي سم د لاسه دا رباعي وويله:

ملكك به زرغون کړم په ورکړه راسه گـــوره وربـځې د داد لـــه پاســـه

خـــول مې د عدل په درو روڼ دی جهان به زيب مومي زما له لاسه

د همدې نهمې پيړۍ په جريان کې پښتو ادب ته (ساقي نامه) هم راغله. دا ساقي نامه پټې خزانې تر موږ رارسولې ده. ساقي نامه د خمريه اشعارو يو ډول دی چې د ساقي، جام، گل، مل او صراحي صفتونه پکې بيانېږي. دا ډول اشعار د مثنوي په قالب کې ويل کېدل. د پښتو لومړنۍ ساقي نامه زرغون خان نورزي ويلې ده.

زرغون خان د نوزادو له نورزو څخه دی. په (۹۱۲هـ) د ده پښتو ديوان بشپړ شوی دی. زرغون خان په (۹۲۱هـ) په ديراوت کې وفات شوی دی.

د زرغون خان نورزي د ساقي نامې پيل دادی:

ساقي پاڅه پياله راکړه مـــرور يار مې پخـــلا کړه

اوبه تويې په لمبو کړه اور مې مړ په دې اوبو کړه

د پښتو ادبياتو په لرغونې دوره کې يو شمېر مېرمنې شاعرانې هم تېرې شوې دي چې يوه يې زرغونه کاکړه ده. د نهمې هجري پېړۍ په دويمه نيمايي کې زېږېدلې ده، چې يو حکايت يې پټې خزانې راوړی دی:

اورېـــدلـــې مـــې قـــصـــه ده چـــې لـــه شـــاتـــو هـــم خـــوږه ده

د اخـــتـــر پـــه ورځ ســـهـــار بـــايـــزيـــد چـــې و رويـــدار

لـــه حـــمـــامـــه راوتـــلـــی پـــه کـــوڅـــه کـــې تـــېـــرېـــدلـــی

ايـــرې خـــاورې چـــا لـــه بـــامـــه راچـــپـــه کـــړلـــې نـــاپـــامـــه

مـــخ او ســـر يـــې ســـو ککـــړ پـــه ايـــرو پـــه خـــاورو خـــړ

بـــايـــزيـــد پـــه شـــکـــر کـــښـــو ســـو د خـــپـــل مـــخ پـــه پـــاکـــېـــدو ســـو

چـــې زه وړ يـــم د بـــل اور چـــې پـــه اور کـــې ســـم نـــســـکـــور

د زرغونې پښتو بوستان لومړنی اخلاقي اثر دی چې تر دې دمخه یې کومه بېلګه په پښتو ادب کې نه لرو. همدارنګه له فارسي څخه د ادبي آثارو د ترجمې تاریخ هم له زرغونې څخه پیلېږي.

زرغونه د پښتو ژبې شاعره، ژباړونکې او ښه خطاطه وه. په زرغونې پسې بله مېرمن رابعه ده چې د ظهیر الدین محمد بابر د زمانې شاعره وه. په کندهار کې اوسېده. د اشعارو دیوان یې درلود. یوه رباعي یې پټې خزانې راوړې ده:

| | |
|---|---|
| ادم یې ځمکې وتــه راستــون کا | په اور د غم یې سوی لړمون کا |
| دوزخ یې روغ کا پرمخ د ځمکې | نوم یې د هغه، دلته بېلتــون کا |

په دې دوره کې دریمه مېرمن بي بي نېکبخته نومېږي. د شېخ الله داد لور او د شېخ قدم مېرمن وه. پلار نیکه یې په اشنغر کې اوسېدل. عالمه، زاهده او پرهېزګاره ښځه وه.

په (۹۶۹هـ) کال کې یې د (ارشاد الفقرا) په نامه یو کتاب لیکلی و چې درې ټوټې ترې محمد هوتک په پټه خزانه کې راخیستې دي. د یوې ټوټې څو بیتونه یې په دې ډول دي:

| | |
|---|---|
| په زړه ښاد شې اې مؤمنه | په ظاهـــر په بـاطن سپینه |
| ظاهر زهد په اخلاص کړه | په زړه ټینګ شــه له یقینه |
| شکر صبر په هر حال کړه | خود نمای مه شه خودبینه |

په حکایتي آثارو کې په دغه دوره کې د دوست محمد کاکړ یو حکایتي اثر معلوم دی چې (غرغښت نامه) نومېږي او په (۹۲۶هـ) کال یې په ژوب کې نظم کړی دی.

له دې کتاب څخه د پټې خزانې مؤلف محمد هوتک یو حکایت تر موږ رارسولی دی چې یو څو بیتونه یې دادي:

| | |
|---|---|
| لــه نــیکانــو روایت دی | هسې تــوګه حــکایت دی |
| نور محمد کاکړ راوي دی | چې یې فیض تل جاري دی |
| د نیکــونــو له خولې وایي | چې مــنښت یې راته ښایي |
| چې کـــاکړ نیکـه زاهد و | لــوی څښتن له تل عابد و |

د غرغښت نامې حکايات په پښتو مثنوي نظم شوي وو.

په لسمه هجري پېړۍ کې په پښتو شعر کې عرفاني مضامين پراختيا مومي. دغه وخت په هندوستان کې درې شاعران پېژنو چې درې واړه صوفيان، عابدان او زاهدان وو. دا شاعران، شيخ عيسی مشواڼی، شيخ علي سرور لودي او شېخ بوستان بړېڅ دي. له دغو شاعرانو څخه شېخ عيسی مشواڼی د هندوستان د افغان پاچا شېرشاه سوري معاصر و. د ژوند زمانه يې د (۹۵۰هـ) شاوخوا ټاکل شوې ده. په پښتو، فارسي او هندي ژبو يې يوه منظومه رساله ليکلې ده.

د کلام نمونه يې په لاندې ډول ده:

په خپله کار کړې په خپل انکار کړې
کله بادار يم کله مې خوار کړې
ته خو قادر يې په صفتونو
کله مې نور کړې، کله مې نار کړې
عيسی حيران دی په دې شيونو
کله مې يار کړې کله اغيار کړې

د يوولسمې پېړۍ په لومړيو کې په کندهار کې شېخ صالح محمد الکوزی يو عارف شاعر تېر شوی چې يوه نمونه يې پټې خزانې تر موږ رارسولې ده. شېخ ډېر عابد او عالم سړی و. خپل وخت يې طالبانو ته په تدريس تېراوه او خلکو ته به يې د سمې لارې لارښوونه کوله.

د متن لنډيز

د پښتو ادبياتو لرغوني دوره له دويمې هجري پېړۍ څخه پيلېږي او د يوولسمې پېړۍ تر لومړيو کلونو پورې رسېږي. يا په بله وينا د امير کروړ سوري څخه پيل او د بايزيد روښان تر ظهور او پاخون پورې رسېږي. د لرغوني دورې آثار د ريګويدا، اوستا له سندرو سره ورته والی لري، ځکه چې موضوعګانې او قالبونه يې يو ډول دي.

د لرغونې دورې موضوعات د نمانځنې سندرې، وياړنې، ويرنې، مينه، ښېلتون او اخلاقي ښوونې دي. شعرونه يې ساده او روان دي. پېچلي تخيلات او لفظي صنايع نه لري. د غوريانو په دوره کې د قصيدو جوړول يو نوی پړاو دی. ددغې دورې آثار لږ دي او يا تر موږه په محدوده توګه رارسېدلي دي او نور يې د زمانې په تېرېدو سره له منځه تللي دي، ځکه د هر شاعر او ليکوال محدودې نمونې په لاس کې لرو. زياتره کتابونه او ديوانونه د پرديو يرغلګرو (چنګېز، تيمور او نادر افشار) د حملو په پايله کې له منځه تللي او لوټ شوي دي. يوازې د سليمان ماکو د تذکرة الاولیا څو پاڼې تر موږه رارسېدلي دي.

په دې دوره کې پښتو ادبي آثار د بدلون، ودې او پراختيا په حال کې دي؛ ځکه په همدغه دوره کې د خپلو ملي اوزانو ترڅنګه قصيده، قطعه، غزل او مثنوي هم رامنځته کېږي. د محتوا له اړخه پښتو شعر د ژوند بېلابېل موضوعات خپلوي، لکه: د رزم و بزم خبرې، ديني او عرفاني موضوعات، اخلاقي پند و نصايح، وعظونه او نور... د شعر ځينې ځانګړې معنوي ډولونه لکه وياړنه، ساقي نامه، حکايتي آثار هم په دې دوره کې رامنځته کېږي.

د دريمې هجري پېړۍ په دوران کې له عربي څخه پښتو ته ژباړه پيلېږي، وروسته له فارسي ادبياتو سره پښتو ادبيات اړيکې پيدا کوي.

د سعدي بوستان په لسمه هجري پېړۍ کې د يوې پښتنې مېرمنې له خوا ترجمه کېږي، په دې توګه له فارسي څخه ژباړه په لسمه هجري پېړۍ کې پيلېږي. ددغې دورې آثار په غور، سليمان غر او ملتان کې رامنځته شوي، يعنې دغه وخت پښتانه له پښتونخوا څخه نيولې تر هندوستان پورې اوسېدل. د دې دورې آثار په دوو لرغونو تذکرو پټې خزانې او تذکرة الاولیا کې راغلي دي. د دې دورې په آثارو کې د پښتو خپل زاړه لغتونه او ترکيبونه شته چې ځينې يې اوس په محاوره کې نه استعمالېږي. ددغې دورې آثار په وروستيو کې له عربي او فارسي څخه په کلماتو کې اغېز قبلوي.



## فعالیتونه

۱_ زده کوونکي دې لاندې پوښتنو ته ځوابونه ووايي.

- د پښتو لومړنی شعر څه وخت او د چا له خوا ويل شوی دی؟
- په لرغوني دوره کې پښتو قصيده ويونکي څوک وو؟
- د لرغوني دورې آثار تر موږ پورې چا رارسولي دي؟
- د لرغوني دورې کومې ښځينه شاعرانې پېژنئ؟

۲_ ښوونکی دې زده کوونکي په څلورو ډلو ووېشي يوه ډله دې د لرغوني دورې د شاعرانو نومونه، بله ډله دې کتابونه، بله ډله دې د شعر د ځانګړنو او څلورمه ډله دې د پښتو ادب اړيکې له نورو ژبو سره په څو کرښو کې وليکي.

۳_ د مقاومت شعر څه وخت او د چا له خوا پيل شو؟

٤_ زده کوونکي دې په متن کې عام او خاص نومونه پيدا او وليکي، بيا دې په وار سره په ټولګي کې ووايي.

٥_ په لرغوني دوره کې نثر ليکل څه وخت پيل شول، له دغې دورې څخه موږ د نثر کومه نمونه لرو؟

٦_ زده کوونکي دې لاندې لغتونه معنا او په جملو کې استعمال کړي:

| لتاړ | ايوادونه | دښن | پلن | زړن | مخسور |
|---|---|---|---|---|---|
| دريځ | ستايوال | سوبه | ګروه | روڼلی | مهجور |
| ښندم | کويله | خول | مواس | مرحبا | |



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې په کور کې لوست په غور سره ولولي او ددغې دورې په مهمو ټکو دې خپل نظر وليکي، په بله ورځ دې په پښتو درسي ساعت کې ولولي.



# ښځې او لنډۍ

تاسې په تېرو درسونو کې ولوستل چې د پښتو شفاهي منظوم ادبيات په دوو ډلو وېشل کېږي. يوه ډله يې عامې سندرې دي او بله ډله يې خاصې سندرې دي. خاصې سندرې هغه دي چې د نالوستو ولسي شاعرانو له خوا جوړې شوي دي. لکه چاربيتې، بدلې، بګتۍ، لوبې، داستان، مقام، کسرونه او نور... عامې سندرې هغه دي چې ويونکي يې نه دي معلوم او په ټول ولس پورې اړه لري. لکه لنډۍ، سروکي، نارې، د ښادۍ بدلې او نورې. د عامو سندرو يو ډول لنډۍ دي چې د پښتو په منظومو شفاهي ادبياتو کې يو مشهور ډول دی. له لنډيو سره ټول پښتانه آشنا دي. لنډۍ دوه مسريزه منظومه ده چې لومړۍ مسره يې لنډه نهه سېلابه او دويمه يې اوږده ديارلس سېلابه ده. په دغه لنډه منظومه کې يو بشپړ مضمون ځايداى شي. لنډۍ په مختلفو سيمو کې په مختلفو نومونو يادېږي، لکه: لنډۍ، ټپه، ټيکۍ، مسره او نور...

په دې لوست کې په هغو لنډيو غږېږو چې د ښځو له خوا ويل شوي دي.

ــ ولې ښځې لنډۍ وايي؟

لکه څنګه چې مخکې مو ووېل د لنډیو ویونکي معلوم نه دي. لنډۍ د عام ولس دي. یو شپون، یو اوښبه، یو بزګر او په زیاته اندازه زموږ کلیوالو ښځو ډېرې لنډۍ ویلي دي. یا په بله وینا ښځې د لنډیو په ایجاد کې ډېره برخه لري.

په ټولنه کې د ښځې د ژوند شرایط په خاصه توګه سخت دي، تر هر څه دمخه دا ټولنه د نارینه وو ده او نارینه وو د ځان لپاره جوړه کړې ده. د ټولنې اساسي ارزښتونه د نارینتوب ارزښتونه دي. په دې ټولنه کې په ښځې باندې دوه ډوله فشارونه راځي، فزیکي او اروایي. په فزیکي لحاظ د کور ټول درانه کارونه د ښځې په غاړه دي. د کروندې یو څه برخه په نارینه وو پورې اړه لري، خو نور ډېر وخت یې هسې تېرېږي.

ښځه له سهار څخه تر ماخوستنه یوه شېبه کراره نه کېني. د فصلونو په وخت کې هم ښځه له نارینه وو سره د یوې، لو او درمندونو په راټولولو کې پوره مرسته کوي. برسېره پر دې په ورځ کې دوه ځلې د اوبو راوړل، د اولادونو روزنه، ډوډۍ پخول، کټې پخول او جامې ګنډل او پریمنځل او نور داسې ډېر کارونه ښځې سرته رسوي.

هغه څه چې ښځه ځوروي، هغه د دې روحي فشار دی او احساس کوي چې د دې انساني ښځینه طبیعت د پښو لاندې کېږي او یا ورته په سپکه سترګه کتل کېږي، همدغه د روحي فشارونو له کبله د مقاومت ترڅنګه عکس العمل ښکاره کوي او د خپل عکس العمل لپاره د سندرې (لنډۍ) لاره غوره کوي او په لنډیو کې د خپل اعتراض غږ پورته کوي او هغه څه چې په ښکاره ډول یې نه شي ویلی په لنډیو کې یې بیانوي.

لنډۍ د پښتو د ولسي ادب روح دی او د ژوند ټولو اړخونو پکې انعکاس موندلی دی. ښځې چې په عنعنوي توګه له ډېرو پابندیو سره مخ دي او په ډېرو موضوعاتو کې د وینا، مشورې او تصمیم حق نه لري، نو خپل دغه تاثرات په لنډیو کې څرګندوي چې د دوی دغه څرګندونه بیا ډېر ژر په ټولنه کې خپرېږي.

دوی په لنډیو کې د هرې موضوع څرګندونه کوي. ټولنیزې پابندۍ غندي، د خپلې مینې، غم او خوښۍ، د وصال خوښي او د فراق غم او غوسې، فخر او ویاړ، ننګ او غیرت او د ځینو ټولنیزو عنعناتو او دودونو څرګندونه کوي. د ژوند حقیقتونه یو په یو بیانوي او

ناوړه خواوو ته يې په انتقادي توګه ګوري. زموږ په ټولنه کې اکثره ښځه د عنعنوي او رواجي زنځيرونو په کړيو کې بنده ده او د دې انساني نفس يې قيد کړی دی.

خدايه په څه ګناه کړېږم
لکه ستي په سرو لمبو کې ناسته يمه

په لنډيو کې بې شماره کردارونه تر سترګو کېږي چې يو مهم کردار يې ښځه ده. ښځه لکه څنګه چې په ټولنه کې ده، هماغسې له هر موقف څخه لکه خور، ماندينه، مور، خورزه، ورېره او مينې په توګه راڅرګندېږي.

د ښځو د لنډيو عامه موضوع د دوی مظلوميت دی او دا مظلوميت مختلف ډولونه لري. د پلار په کور کې مظلوميت، د مېړه په کور کې مظلوميت او په ټولنه کې ددوی مظلوميت.

پر مخ مې مه وهه ظالمه
د اوښکو ډکې سترګې چاته واړومه

کوم تاوتريخوالی چې له ښځو سره کېږي او يا جبري ودونو ته اړ ايستل کېږي او يا د ولور په وړاندې په جبري توګه د زيات عمر خاوند ته نکاح کېږي، دا ټول په هغو لنډيو کې وينو چې د ښځو له خوا ويل شوي دي.

د ښځو لنډۍ د دوی د ژوند هغه رښتيني هنداره ده چې زياتی او کمی پکې نښته.

چې ډوډۍ خورم دادا قارېږي
چې روپۍ شرنګ کړي دادا شين له خندا شينه

مينه يم منکره نه يم
که شينکی خال مې د چړو په څوکو ځينه

صورت زما واک يې د نورو
ربه ته واخلې دا بې واکه صورتونه

سوال د الله په در کې وکړه
پلار مې سودي دی ما مالدار ته ورکوینه

زما بې بې دادا ته وایه
خوشحاله نه یم له ناکامه ناسته یمه

مسافري دې روزي مه شه
زه دې په سپینه خوله ویده پرې ایښې یمه

لکه څنګه چې ښځې د تاریخ په اوږدو کې د وطن او استقلال ساتنې په وخت کې له خپلو نارینه وروڼو سره څنګ په څنګ دریدلي دي، د خپلو میړانو او کارنامو یادونه یې په لنډیو کې کړې ده. په دغسې حساسو حالتونو کې یې نارینه وو ته روحیه ورکړې او د دوی د هڅونې له کبله هم بری تل زموږ د خلکو په نصیب شوی دی. د میوند په جګړه کې د ملالې لنډۍ یوه تاریخي بېلګه ده:

که په میوند کې شهید نه شوې
خدایږو لالیه بې ننګۍ ته دې ساتینه

نور مثالونه یې هم ډېر دي لکه:

که تور وربل مې میراتېږي
په وطن جنګ دی جانان نه ایسارومه

جانانه داسې وخت به راشي
چې ټوپک واخلو لاس تر لاس مورچل ته ځونه

جانان به څنګه توره نه کړي
تر نیمایي مورچله زه ورسره ځمه

ځینې څېړونکي وايي چې لنډۍ د یوې نیمې مسرې شعر دی. په دې یوه نیمه مسره کې پوره او بشپړه معنا پرته ده. په دې یوه نیمه مسره کې د مطالبو یو سمندر په غورځنګونو دی. په دې شعر کې د تېر وخت د یوې پېښې شوې حادثې سببونه او پایلې بیانېږي. چې ددغسې یوې لنډۍ په یادولو سره لوستونکي ته په ذهن کې د تېرې پېښې یو بشپړ انځور رامخته کېږي:

د خـپـلـه لاســـه مــې پـــرې مــړ کــړې
چـې ډزې وشـــوې زه پـر بـام دروخـتـمـه

په لنډیو کې ښځو د پښتني ټولنې کمزوری اقتصادي حالت ډېر ښه څرګند کړی دی. نوکري او مسافري چې دواړه سره تړلي دي او دې دواړو خواوو چې ښځې ځورولي دي نو بیا یې دا درد په لنډیو کې داسې بیان کړی دی:

پـــه تــا بـــه کـــوم وطـــن آبــــاد وي
زه د بېلتون پـه تـروږمـۍ کـې ناسته یمه

نـیـسـتـي پـېـغـور نـــه دی جـانـانـه
زه د چـربـانـګ میچنه سـتـا لـپـاره کړمه

سـبـا مــې بـیـا د کــــډې وار دی
پــه سـر پـنـډونـه چـلـوم پـه زړه غمونه

خـدایــه د قـطـر بـــــازار وران کــړې
په شتو مېړو کې جونې کونډې ناستې دینه

مـــســـافــري پـــه بـــې غـمـــۍ کــړه
تـرلـه دې خپله پـه نـامـه دې نـاسـتـه یمه

د متن لنډیز:

لنډۍ د منظومو شفاهي ادبیاتو یو مشهور ډول دی چې ویونکي یې معلوم نه دي او د ټول ولس ګډ مال دی. لنډۍ د شفاهي ادبیاتو په عامو سندرو کې راځي چې د ښځو برخه پکې ډېره زیاته ده. لنډۍ دوې مسرې لري چې لومړۍ یې لنډه نهه سیلابه او دویمه یې اوږده دیارلس سیلابه ده.

په لنډیو کې ټول پښتانه او په تېره بیا ښځې د خپل ژوندانه خوښۍ او ناخوالې یو په یو بیانوي.

د ژوندانه ډېر هغه اړخونه چې دوی یې د ویلو حق نه لري په لنډیو کې څرګندوي. لنډۍ د ښځو لپاره د تسکین یوه وسیله ده چې خپل دردونه، احساسات او خپلې غوښتنې پکې بیانوي. په عامه توګه د ټولو پښتنو ژوند او په تېره د ښځو د ژوندانه داسې کوم اړخ به نه وي چې په لنډیو کې نه وي څرګند شوی. انساني مینه، خواري، مزدوري، مسافري او جلا وطني، پښتني عنعنات، وطن ساتنه او مېړانه، تاریخ او تاریخي پېښې، ګودر او ریبار، ستاینه او غندنه او د ورځني ژوند ټول اړخونه د لنډیو موضوعات دي.

لنډۍ په مختلفو سیمو کې په مختلفو نومونو یادېږي، لکه: لنډۍ، ټپه، مسره، ټیکۍ او نور... لنډۍ د ښځو د اظهار یوازینۍ وسیله ده چې خپل هر ډول احساسات پکې په رښتیني ډول څرګندوي او وجه یې داده چې د لنډیو ویونکي معلوم نه وي او د چا نوم ورپورې تړلی نه وي.

د لنډیو له مطالعې څخه زموږ د خلکو ژوند، تاریخ، دود دستور، کړه وړه او د دوی ځانګړي خصوصیات څرګندېدای شي.



## فعالیتونه

۱ـ زده کوونکي دې متن په وار سره ولولي او بيا دې په متن کې راغلې يوه، يوه لنډۍ معنا کړي.

۲ـ زده کوونکي دې د لاندې لنډيو مفهوم په خپلو کتابچو کې وليکي او بيا دې په ټولګي کې واوروي.

کــه پــه مــيــونــد کــې شــهــيــد نــه شــوې
خــدايــږو لالــيــه بــې ننګۍ تــه دې ساتينه

د خــپــلــه لاســـه مـــې پـــرې مـــر کـــړې
چــې ډزې وشـــوې زه پــر بــام دروخــتــمــه

زمـــــا بـــــې بـــــې دادا تـــــه وايـــــه
خــوشــحــالــه نــه يــم لــه نــاکــامــه نــاســتــه يمه

۳ـ زده کوونکي دې په وار سره يوه يوه لنډۍ له خپله ځانه ووايي، موضوع او مفهوم دې په خپلو خبرو کې څرګند کړي.

٤ـ زده کوونکي دې لاندې پوښتنو ته ځوابونه ووايي:

- لنډۍ د جوړښت له مخې څه ډول شعر دی؟
- لنډۍ په کومو نومونو يادېږي؟
- لنډۍ په کومو سندرو کې راځي؟
- لنډۍ د چا له خوا څخه ويل کېږي؟

۵ـ په متن کې راغلې لنډۍ په غور سره ولولئ. په دغو لنډیو کې نومونه، صفتونه او فعلونه په نښه کړئ او په وار سره يې په ټولګي کې ولولئ.

۶ ـ زده کوونکي دې په وار سره د لاندې لنډيو مفهوم په خپلو خبرو کې ووايي:

کــه ســرېـــې فــصــلــونــه وشــول
مــاتــه لالــي د ســره ســالــو ويــلــي ديــنــه

ســتــرګــې دې وې وتــلــې نــه وې
چــې پــه مــالــت دې لــويــدم نــه دې ليدمه

فعل هغه کلمه ده چې له درې ګونو زمانو څخه په یوه کې د يو کار کېدل څرګند کړي.
لکه: خوړل، تلل، کول، کړل.
زه کتاب لولم، هغه ولاړ، ملالۍ تللې وه.

۷ـ زده کوونکي دې د لنډيو موضوعات وليکي او ودې وايي چې لنډۍ زموږ د ژوند کوم موضوعات راچاپېروي، بيا دې په وار سره په ټولګي کې ولولي.



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې په خپل کور کې، له خلکو، (په ټېره بيا د کور له ښځو او نجونو څخه يا له خپل شاوخوا خلکو څخه لس لس لنډۍ چې په دې لوست کې نه وي راغلي، په خپلو کتابچو کې وليکي او بله ورځ دې په ټولګي کې واوروي او خبرې دې پرې وکړي.



# افضل خان او تاریخ مرصع



په پښتو ادب کې ډېر نومیالي لیکوال تېر شوي چې په خپل وخت کې یې د قدر وړ آثار لیکلي او پښتو ادب یې پخپلو لیکنو بډای کړی دی.

له روښانیانو نیولې، بیا تر خوشحال کورنۍ پورې او له دوی راوروسته د پښتو ادب ځلانده او غني دوره ده چې پښتو ادب پرې ښکلی دی.

د ختکو په کورنۍ کې ډېر شاعران او لیکوال تېر شوي چې موږ ته یې د شعرونو دیوانونه او نور کتابونه پاتې دي. ددغې کورنۍ یو نومیالی لیکوال افضل خان ختک دی چې پخپله یې هم پښتو ادب ته د پاملرنې وړ خدمتونه کړي دي او نور یې هم دغه خدمت ته هڅولي دي.

په دې درس کې به تاسو د افضل خان ختک په اړه یو لړ معلومات ولولئ چې د ده له ژوند او کتابونو سره آشنا شئ.

ــ د تاریخ مرصع په اړه مو دمخه څه معلومات درلودل؟

ــ د افضل خان نوم مو دمخه اورېدلی و، که مو اورېدلی وي په اړه یې خبرې وکړئ.

تاریخ مرصع په پښتنو تاریخونو کې یو مهم او ارزښتمن کتاب دی چې افضل خان خټک لیکلی دی. تاریخ مرصع په پښتو ژبه کې د پښتنو لومړنی تاریخ دی چې د پښتنو په اړه ډېر معلومات لري. افضل خان خټک په ۱۰۷۵هـ. کې پیدا شوی او تر ۱۱۶۱ یا ۱۱۶٤ پورې یې ژوند اټکل شوی دی.

افضل خان خټک د اشرف خان هجري زوی او د خوشحال خان خټک لمسی دی. له کوچنیوالي څخه هوښیار او بیدار و. خوشحال خان هم پخپله کورنۍ کې ده ته زیاته پاملرنه کوله او زیاته هیله یې ورته لرله. دی هم له خپل نیکه سره په ځینو سفرونو او کله کله د ښکار کولو په وخت کې ملګری و. خوشحال خان په خپل ژوند کې د قوم مشري د ده پلار اشرف خان هجري ته وسپارله، خو اشرف خان د خپل ورور بهرام په اختلاف کې د مغلو د حکومت په لاس کې ولوېد او هند ته زنداني ولېږل شو چې له څوارلس کاله زندان څخه وروسته په هند کې مړ شو.

کله چې اشرف خان هجري د بهرام خان په لمسه د اورنګ زیب حکومت بندي کړ، نو بهرام خان د قوم د مشرتابه واک پخپل لاس کې واخیست او د خوشحال خان له خوا هم مشري افضل خان ته وسپارله شوه.

د بهرام خان تر مړینې وروسته افضل خان په مستقله توګه د خپل قوم سردار شو. ویل کېږي چې یو شپېته کاله یې د خپل قوم مشري وکړه.

افضل خان د قوم د مشرۍ تر څنګه پښتو ادب ته هم ډېر خدمتونه وکړل. ښه شاعر و او په تاریخ لیکلو کې یې لوی لاس درلود. همدارنګه یو ښه ژباړونکی و. د شعرونو دیوان یې نه دی راپاتې.

د افضل خان خټک له مهمو آثارو څخه یو هم (تاریخ مرصع) دی چې قلمي نسخې یې په (برټش) موزیم، هند، بنګال او لاهور کې شته.

د تاریخ مرصع په لومړۍ برخه کې د ملك طالوت او خالد بن ولید بیان راغلی دی. ورپسې اووه دفترونه په دې ډول دي:

لومړی دفتر د لودي پاچاهانو حالات بیانوي. دویم دفتر د سوریانو په باره کې دی. دریم

دفتر د لویو پښتنو امیرانو حالات بیانوي. څلورم دفتر د کابل د صوبې پېښې څرګندوي.

په پنځم دفتر کې د سړبني او نورو پښتنو قومونو بیان راغلی دی. شپږم دفتر د ختکو د قبیلې حالات او جګړې بیانوي. په اووم دفتر کې د پښتنو بزرګانو حالات او د ژوند پېښې راغلي دي. د کتاب په وروستۍ برخه کې د پښتني قبایلو نسب نامه راوړل شوې ده.

افضل خان خټک د دې تاریخ په لیکلو کې د خواجه نعمت الله هروي د (مخزن افغاني)، د اخوند درویزه له (مخزن الاسلام) او (تذکرة الابرار) او د خوشحال خان له (بیاض) څخه ګټه اخیستې ده.

په دې کتاب کې تر ۱۱۳۶هـ.ق. پورې واقعات راغلي دي، خو دا نه ده معلومه چې د کتاب لیکل یې څه وخت پیل کړي او په کومه نېټه پای ته رسېدلی دی. تاریخ مرصع په اصل کې د پښتنو تاریخ دی، خو په ضمني توګه د هندوستان د تاریخ پېښې هم پکې راغلي دي.

د تاریخ مرصع نثر روان او ساده دی. جملې یې لنډې لنډې او د پښتو سوچه کلمات استعمالوي. ځای، ځای پښتو متلونه هم راوړي.

مشکل او نا آشنا لغتونه نه کاروي. ځینې ترکیبونه یې فارسي ژبې ته نژدې دي. تاریخ مرصع د دوست محمد کامل مومند په مقابله او سریزه په ۱۹۷۴م. کال کې خپور شو. د کتاب د مخونو شمېر (۱٤۹٤) ته رسېږي.

د تاریخ مرصع د نثر نمونه:

((میرزا بله چاره بې له صلحې ونه لیدله، سرې یې تر میان کړل. راویې بلل، ورته یې وویل چې د ما کور هم ستاسو خپل دی. پښتانه چې په عقل کې سازوار دي ځکه ډېر نفساني دي. په لږ سود مقصود ډېر بهبود تر شا کوي. ورځ په ورځ به مشرانو د اولس میرزا ته امد و رفت کاوه.

یوه ورځ اته سوه کسه راغلل. همګي بې وسلې. یو محمود د محمد چغرزي زوی یو چړوکی په خپله بډه وړې وه. چې ورننوتل، د میرزا بدنیتي یې ولیدله.

هغه دې نورو ته ووې چې که وایئ زه به مرزا مړ کړم. هغو نورو منع کړ چې حق د نمک

ساتلې بويه. موږه سره بد نه کا. دا چوغلي جنکا ګيګيانې کړې وه چې دا هومره ډېر به يو ځلې بيا نه مومي او له دوی نه په نيکۍ خلاص نه شې. دا وخت غنيمت وګڼه او واړه قتل کا.

واړه يې وترل، يو، يو يې وواژه. په هغه وخت يو لوی ملک د ميرزا په خدمت عرض وکړو چې دوه التماس ارزو لرم که قبول شي. ميرزا ووې چې قبول دي.

اول يې دا ووې چې وراره زما ملک احمد له قيده خلاص شي. بادشاه يې خون معاف که، بل دې د اولس اطفال بند نه شي. بلکه پرېږدئ هر لور ته چې درومي. ميرزا قبول کړ. ميرزا ورته ووې چې زما ګمان وو چې ته به خپل سر غواړې يا به دوه کسه ځوانان غواړې. ده ورته ووې چې تر دې واړو زه ښه نه يم. که دومره عزيزان مې مري زه به خپل ځان په څه خلاصوم.))

د افضل خان بل کتاب علم خانه دانش دی چې د فارسي د کليله و دمنه پښتو ژباړه ده. د لرغوني هند د غه کتاب (پنج تنترا) په (۲۰۰ق.م.) کې حکيم بيدپايي په سنسکرت کې ليکلی و. دغه کتاب بيا وروسته په پهلوي، عربي، يوناني، فارسي ژبو وژباړل شو. د اکبر پاچا په وخت کې د هغه يو درباري عالم او ليکوال ابو الفضل دا کيسې په فارسي ژبه د (عيار دانش) په نوم ترجمه کړې وې، چې افضل خان له همدې کتاب څخه د (علم خانهٔ دانش) په نوم پښتو ته وژباړه.

افضل خان د دې کتاب د ژباړلو په هکله وايي: ((وپوهېږه چې کتاب د کليله او دمنه جمع کړی د هندوستان دانشورانو دی. همېشه به دانايان او عالمان د يونان د فارس په دا فکر وو چې يو کتاب د ملوکانو د پاره دستور العمل ساز کړو. اما دا له چا ونه شوه. مګر د هندوستان په حکيمانو ساز شو، لوی لوی خبرې يې د بې زبانو جمع کړې. فايدې يې پکې ملاحظه کړې، حکمت د پند خبرې د حکيمانو چې دارو د رنځ د نادانانو او غذا و قوت د دانايانو دی. په طريق د هزل مطايبې دواړه چې دانايان يې د حکمت نه پند واخلي او نادانان يې رغبت قصې او افسانې ته وکړي. په رغبت په محبت يې ياد کړي او خورد سالان چې په مقام د تحصيل د علم کې دي په ګومان د علم و پند يادول په دوی ګران نه دي چې په عقل

تجربه ورسي. هغه چې دوی یاد کړي دي له هغو افسانو نه نفع واخلي او د عقل په خزانه دانشمند شي.

مثال د دې خبرې داسې دی لکه څوک په هلکوالی کم عقل وي او په مرتبه د عقل ورسي، په خزانه پېښ شي چې پلار د ده د پاره ساتلی وي. په هغه توانگر شي او باقي عمر له ترده فارغ شي.))

افضل خان ختک سربېره پر دې چې یو مورخ، ژباړونکی، لیکوال او شاعر و، د خپلې ژبې سره یې ډېره مینه درلوده او د همدغې مینې پر بنسټ یې پښتو ژبې او ادب ته ډېر خدمتونه وکړل.

د ده پر غوښتنه له عربي او فارسي څخه پښتو ژبې ته ډېر کتابونه وژباړل شول، لکه: د گوهر خان ختک (قلب السیر) د محمد مظفر تاریخ اعثم کوفي او د عبدالحلیم اختیارات بدیعې. د فرهنگي زیرمو د غني کولو او خوندي کولو لپاره یې هم کاتبانو ته دنده وسپارله چې د پښتو آثارو څخه څو نقلونه ولیکي. همدارنگه د خپل نیکه خوشحال خان ختک خواره واره آثار یې راټول او ترتیب کړل.

د خوشحال خان د کلیاتو او نورو آثارو یې څو، څو نسخې ترتیب کړې، افضل خان پخپله هم کتابونه ژباړل او نور یې هم هڅول چې د پښتو ژبې د بډایتوب په کار کې ونډه واخلي.

د افضل خان ختک نثر د خوشحال خان ختک او عبدالقادر خان ختک له نثر څخه وروسته د خپل وخت یو ښه او غوره نثر گڼل شوی دی. د تاریخ مرصع نثر تاریخي نثر دی او د علم خانه دانش نثر قصه یي نثر دی. لکه څرنگه چې مخکې یادونه وشوه د افضل خان ختک د نثر جملې او ترکیبونه آسان او روان دي. وړې او لنډې جملې کاروي چې مطلب ترینه په آسانی اخیستل کېږي، خو دغه نثر د هندي او فارسي ځانگړي اصطلاحات او کلمات ډېر لري.

د نثر ادبي ښکلا یې کمه ده او ادبي ارزښت یې لږ دی. یوازې د پښتو په تاریخي نثرونو

کې د پاملرنې او مطالعې وړ نثر دی ځکه چې د پښتنو لومړنی موجود تاریخ دی. د تاریخ مرصع په نثر لیکنه کې افضل خان د خوشحال خان ختټک د نثر لیکنې د سبک پیروي کړې ده.

د خوشحال خان بیاض یې هم کټ مټ په تاریخ مرصع کې را اخیستی دی.

افضل خان ختټک شعرونه هم ویل، خو د شعرونو د دیوان څرک یې تراوسه نه دی لګېدلی. د افضل خان د شعرونو یوه نمونه په تاریخ مرصع کې او بله په علم خانه دانش کې راغلې ده:

کاروبار مو همګي راته عیان دی
و عیان ته څه حاجت د بل بیان دی
سیلابونه د خلاف شول و بله جمع
بیا لنډی د آباسیند غونډې روان دی
آئینه چې له زنګاره مصفي وي
که زنګي مخ په کافورو نمایان دی
(له تاریخ مرصع څخه)

صورت مې هر څو که ډېر زبون دی
که مې د ځمکې د لاندې یون دی
زه به په لوري د اشنا خوځم
که یون مې هر څو په شواخون دی
(له عیار دانش څخه)

د متن لنډیز

افضل خان ختټک د ختټکو د کورنۍ یو روښانه ستوری و. د اشرف خان هجري زوی او د خوشحال خان ختټک لمسی دی. په ۱۰۷۵هـ کې زېږېدلی او تر ۱۱۶۱ یا ۱۱۶٤هـ پورې ژوندی و. دی له خپل پلار څخه وروسته د قوم مشر او سردار و.

مشهور آثار یې (تاریخ مرصع) او (علم خانه دانش) دي. تاریخ مرصع د پښتنو یو لوی او جامع تاریخ دی چې د لودیانو، سوریانو، خټکو، پښتنو امیرانو او پښتنو بزرګانو احوال پکې راغلي دي. د هندوستان د مغلیه حکمرانۍ کورنۍ احوال او پېښې پکې هم راغلي دي.

په تاریخ مرصع کې تر ۱۱۳۶هـ. پورې حالات او پېښې راغلي دي. د افضل خان خټک بل کتاب علم خانه دانش د فارسي (عیار دانش) پښتو ترجمه ده چې په ۱۱۲۸هـ. کې یې کار تمام شوی دی.

د افضل خان د شعر دوې نمونې تر موږه رارسېدلي او نور شعرونه یې لاس ته نه دي راغلي. د افضل خان خټک په غوښتنه ډېر کتابونه له عربي او فارسي څخه ژباړل شوي دي. د خیل نیکه آثار یې راټول او ترتیب کړي دي. د خوشحال کلیات او نور آثار یې د کاتبانو په واسطه په څو څو نسخو کې ترتیب کړي دي. په پښتو ژبه او ادب کې د دغه مؤرخ، ژباړونکي، لیکوال او شاعر کارونه د ستاینې وړ دي.

## څرګندونه

میرزا الغ بیگ د تیمور له کورنۍ څخه د کابل والي و. (۸۵۶هـ.)

## فعالیتونه

۱ـ زه کوونکي دې یو ځل متن له ځان سره ولولي او بیا دې لاندې پوښتنو ته ځوابونه ووایي:

- افضل خان له کومې کورنۍ څخه و پلار او نیکه یې څوک وو؟
- افضل خان د کومو آثارو خاوند دی نومونه یې واخلئ؟
- د افضل خان په کورنۍ کې کوم شاعران پېژنئ نومونه یې واخلئ؟

- د افضل خان له پلار سره څوک مخالف و او څه يې ورسره وکړل؟

۲ـ زده کوونکي دې د تاريخ مرصع د نثر نمونه په وار سره په ټولګي کې په لوړ غږ ولولي او بيا دې د متن مفهوم په خپلو خبرو کې وړاندې کړي.

۳ـ زده کوونکي دې د افضل خان مهم ادبي خدمتونه په يوه پراګراف کې وليکي او بيا دې په ټولګي کې په وار سره ولولي.

٤ـ زده کوونکي دې په وار سره لاندې پوښتنې ځواب کړي:

- تاريخ مرصع له څه شي څخه بحث کوي؟
- افضل خان د تاريخ مرصع په ليکلو کې له کومو کتابونو څخه ګټه اخيستې وه؟

۵ـ زده کوونکي دې ځواب ووايي چې د افضل خان په غوښتنه کوم کتابونه ترجمه شوي دي؟

٦ـ د علم خانه دانش له ترجمې څخه د افضل خان مقصد څه و؟

۷ـ زده کوونکي دې په وار سره د افضل خان خټک د شعرونو نمونې په لوړ غږ ولولي او مفهوم دې په خپلو خبرو کې بيان کړي؟



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې هر يو په خپله خوښه د خټکو د کورنۍ په يو تن شاعر څو کرښې وليکي او په بله ورځ دې په پښتو درسي ساعت کې ولولي.



# پښتو لنډه کیسه



د شلمې پېړۍ په راتګ سره د شعر تر څنګه د پښتو نثر لمن هم پراخه شوه، له پېچلتيا او تکلف څخه ووت او د روانۍ، ساده ګۍ او عام فهمۍ لاره يې غوره کړه. له زړو شکلونو سربېره يې نوي شکلونه هم پخپله غېږه کې ومنل. په دې معنا چې نوي صنفونه او ډولونه يې خپل کړل.

لکه لنډه کيسه، ناول، ډرامه، سفرنامه، تکل او نور ډولونه په پښتو ادب کې رواج شول، وده يې وکړه او پراختيا يې وموندله. ددغو نويو ادبي ژانرونو هر يو يې ځانته ځانګړې جوړښت او چوکاټ لري چې د خپلو ځانګړتياوو له مخې يو له بله جلا کېږي.

موږ په دې لوست کې د لنډې کيسې په تاريخچه باندې لنډې خبرې لرو او د لنډې کيسې د جوړښت او توکو په اړه به هم يو لړ لنډ معلومات ولرو چې تاسې ته به ګټې نه دي.

ـ لنډه کيسه څه ته وايي؟

ـ په پښتو کې کوم ليکوال پېژنئ چې لنډې کيسې يې ليکلې دي؟

له کومې ورځې څخه چې د انسان ژوند پیل شوی دی، له هماغې ورځې څخه کیسې هم پیل شوې دي. پخپله انسان د ژوند په اوږدو کې کیسې جوړې کړې دي او د ژوند په زړه پورې پېښې یې د کیسو په بڼه یو بل ته لېږدولې دي. دا کیسې په لومړي سر کې په شفاهي ډول وې خو کله چې خط منځته راغی نو ددغو کیسو یو څه برخه په لیکلي بڼه خوندي شوه. د نننۍ لنډې کیسې فکر هم له دغو فولکلوري کیسو څخه رازېږېدلی دی. نننۍ لنډه کیسه چې په انګرېزي ژبه کې ورته شارټ سټوري (Short Story) وایي لومړی په غرب کې رامنځته شوه.

په ختیځ کې کیسه ډېره زړه او لرغونې ده. د آریایي کیسو مجموعه د (پنجا تنترا) په نامه له دوه زرو کلونو څخه زیات عمر لري. دا کتاب د نړۍ په ډېرو ژبو ژباړل شوی چې په پښتو کې یې ژباړه درې سوه کاله د مخه افضل خان خټک کړې ده. له لسمې پېړۍ څخه راوروسته په پښتو کې د احمد اخوند لنډې، لنډې حکایتونه هم شته چې اوسنیو لنډو کیسو ته یو څه ورته والی لري؛ خو کومه نننۍ لنډه کیسه چې په غرب کې یې شارټ سټوري بولي په نولسمه پېړۍ کې پیل شوه. لنډه کیسه په اوسنۍ بڼه امریکایي لیکوال اډګارالن پوه پیل کړه او په ۱۸۴۲م. کال کې یې ورته ځانګړي اصول وټاکل. یو بل امریکایي لیکوال او کره کتونکي براندر ماتیوز په (۱۸۸۵م.) کال کې په انګلیسي ژبه کې د لنډې کیسې د نوم وړاندیز وکړ. اډګارالن پوه د لنډې کیسې بنسټګر دی او د لنډې کیسې د پلار لقب یې هم ګټلی دی. لنډه کیسه لکه څنګه چې ووېل شول په اروپا کې رامنځته شوه او بیا یې د نړۍ ادبیاتو ته لاره پیدا کړه. له انګرېزي ادب څخه په تقلید په اردو ادب کې لنډه کیسه پیل شوه.

په اردو ادب کې لنډه کیسه په (۱۹۰۴ _ ۱۹۰۷م.) کلونو کې رامنځته شوه او لومړنی لیکوال چې په دغو کلونو کې یې لنډه کیسه ولیکله پریم چند نومېده. د اردو ادب په تقلید په پښتو ادب کې هم لنډه کیسه د لومړي ځل لپاره د شلمې پېړۍ په دویمه لسیزه کې پیل شوه. په پښتو ادب کې سید راحت زاخیلی لومړنی لیکوال و چې په (۱۹۱۷م.) کال کې یې د (کونډې نجلۍ) په نوم لنډه کیسه ولیکله. په کوزه پښتونخوا کې په راحت پسې بیا نورو لیکوالو د لنډې کیسې په لیکلو پیل وکړ چې د ادب دغه ډول ته یې وده او پراختیا ورکړه.

په راحت پسې چې کوم لیکوالان د لنډې کیسې په میدان کې ځلېدلي دي، نوموونه يې په دې ډول دي: میا ازادګل، سربلند خان، سمندر خان سمندر، عبدالروف نوشهروي، ماسټر عبدالکریم، میر مهدي شاه مهدي، قلندر مومند، ګل افضل خان، زیتون بانو او نور...

په افغانستان کې د لومړي ځل لپاره لنډه کیسه پوهاند عبدالحی حبیبي ولیکله او په (۱۳۱۵هـ.ل.) کال يې د (طلوع افغان) په اخبار کې خپره کړه. دا کیسه (توریالی پښتنه) نومېده. له پوهاند عبدالحی حبیبي څخه وروسته یو شمېر نورو لیکوالو لنډې کیسې ولیکلې او دغه نوي ادبي ژانر ته يې وده ورکړه. هغو لیکوالو چې په دې برخه کې کار کړی دی نوموونه يې په دې ډول دي: موسی شفیق، میرا جان سیال، ګلاب ننګرهاری، حبیب الله تږی، ابراهیم عطایي، محمد دین ژواک، امین افغانپور، عبدالمنان ملګری، مصطفی جهاد او نور...

د لنډې کیسې ځانګړتیاوې:

اډګار الن پوه د لنډې کیسې تعریف داسې کوي: لنډه کیسه هغه نثري داستان دی چې لنډ وي او له نیم ساعت څخه تر دوو ساعتونو پورې ختم شي.

خو دا باید په یاد ولرو چې اوس لنډې کیسې له دې څخه هم لنډې شوي دي. د لنډې کیسې د رامنځته کېدو علت په دې کې دی چې څومره بشري ټولنې د پرمختګ پړاوونه وهل، نو په هماغه اندازه د انسانانو ضرورتونه او مصروفیتونه هم زیاتېدل. لکه څنګه چې پروني انسان ډېر وزګار وختونه درلودل او اوږده اوږده رومانونه به يې لوستل، نو نني انسان د ډېر مصروفیت له کبله دا کار نه شو کولای، خو د دې اړتیا يې هم محسوسوله چې خپله ادبي تنده ماته کړي. همدغه وجه وه چې اوږدو کیسو خپل ځای لنډو کیسو ته پرېښود او په داستاني ادب کې لنډه کیسه خلکو ته ډېره په زړه پورې شوه. د لنډې کیسې یو ستر ارزښت د هغې لنډوون دی چې د وخت د ضایع کېدو مخه نیسي.

لنډه کیسه یو پلاټ یا خاکه لري. په پلاټ کې د پېښو تسلسل راغلی وي یا په بله وینا پیل، منځ او پای پکې وي. چې په پای کې د غوټې خلاصېدلو ته رسېږي. د لنډې کیسې پلاټ کېدای شي کومیډي، تراژیدي، رومانتیک او یا طنز ډوله وي. د کیسې روایت به یا په لومړي شخص یا دریم شخص باندې ولاړ وي.

د لنډې کیسې د جوړښت توکي په دې ډول دي: ۱ـ پېښه، ۲ـ پلاټ یا طرحه، ۳ـ د کیسې پیلامه، ٤ـ کرکټرونه، ٥ـ تلوسه یا ذهني هڅونه، ٦ـ مکالمې (خبرې اترې) او د مناظرو انځور، ۷ـ تخیل، ۸ـ د کیسې اوج یا لوړ ټکی، ۹ـ د کیسې پایله.

هره لنډه کیسه پر یوه پېښه باندې ولاړه وي، که پېښه نه وي نو کیسه نه رامنځته کېږي. طرحه د پېښو تسلسل دی چې ټوله کیسه په دغه طرحه یا خاکه باندې درېږي. پیلامه هم په کیسه کې مهمه ده او دا په لیکوال پورې اړه لري چې کیسه له کوم ځای نه پیلوي او څنګه یې پیلوي. دا په لیکوال پورې اړه لري چې کیسه له منځه پیلوي، له پېښې او یا له پایه خو مهمه داده چې منطقي تسلسل او ارتباط یې وساتي او داسې یې پیل کړي چې لوستونکي جذب کړي.

تلوسه هم د لیکوال په مهارت پورې اړه لري چې څنګه لیکوال د پېښو جزئیات داسې ترتیب کړي چې لوستونکي ته تلوسه پیدا شي چې اوس به څه کېږي؟ کرکټرونه د کیسې شخصیتونه دي چې په کیسه کې خوځېږي او عمل کوي. په دې کرکټرونو کې یو اصلي کرکټر یا هیرو وي چې پېښې په هغه پورې اړه لري او له مختلفو حالتونو او پړاوونو سره مخامخ کېږي. مکالمې یا خبرې اترې په کیسه کې مهمې دي. د کرکټرونو حالات او د پېښو تداووم ترې څرګندېږي او کیسه مخ پر وړاندې بیایي او خوند یې هم زیاتوي. منظر کشي هم ضروري ده، ځکه چې یوه پېښه په یوه ټاکلي ځای او ټاکلي وخت کې رامنځته کېږي او لیکوال دې ته اړ دی چې د مکان یا ځای سم انځور وړاندې کړي.

له تخیل څخه په کیسه کې د پېښو په انځورولو او د کیسې په بیان کې کار اخیستل کېږي. لیکوال د تخیل په ځواک سره د کیسې پېښې او بیان لوستونکو ته داسې وړاندې کوي چې کټ مټ ورته ربښتیني ښکاري.

د کیسې لوړ ټکی هغه دی چې ستونزې او ربړې د حل پړاو ته رسي او غوټې یو په بل پسې خلاصېږي. دلته کیسه د منطقي پایلې په لور روانېږي. د کیسې پای هغه پړاو دی چې دلته باید د لیکوال هغه ټول مقصد، اغېز یا پیغام چې لیکوال یې لوستونکي ته رسول غواړي، بشپړ شي او بیا لوستونکي په خپله قضاوت وکړي نه دا چې پایله برښنده وي.

په لومړي سر کې چې لنډه کيسه رامنځته شوه، نو موضوعات يې محدود وو، په دې معنا چې يا به کيسه کرداري وه يعنې دا چې ټوله کيسه به د يو مخصوص کردار يا کرکټر په شاوخوا چورلېده. يا به د پېښې کيسه وه چې په دې کې به د کيسې اصلي موضوع پېښه وه. همدارنګه به يا د چاپېريال کيسه وه چې د چاپېريال ژوره عکاسي به په الفاظو کې کېدله او پېښه او کرکټر به پکې ضمني وو، خو په راوروسته وختونو کې د کيسو د موضوعاتو لمن پراخه شوه او د ژوندانه له ټولو موضوعاتو څخه يې غېږه راچاپېره کړه.

د متن لنډيز:

لنډه کيسه په غرب کې په نولسمه پېړۍ کې رامنځته شوه. امريکايي ليکوال اډګارالن پوه لومړنی ليکوال و چې لنډې کيسې يې وليکلې او هم يې د لنډې کيسې اصول وليکل. په شلمه پېړۍ کې لنډه کيسه اردو ادب ته رانوتله او لومړنی ليکوال يې منشي پريم چند و چې لنډه کيسه يې وليکله. د شلمې پېړۍ په دويمه نيمايي کې په پښتو ادب کې لنډه کيسه پيل شوه. لومړنی ليکوال راحت زاخيلی و چې په (۱۹۱۷م) کال کې يې د کونډې نجلۍ په نوم لنډه کيسه وليکله.

لنډه کيسه هغه نثري داستان دی چې لنډ وي او له نيم ساعت څخه تر دوو ساعتونو پورې وخت ونيسي. لنډه کيسه هغه نثري داستان دی چې په هغه کې يو چاپېريال يا يو کردار يا يوه کيسه د نورو کردارونو يا پېښو په مرسته داسې بيان شوي وي چې د مکان او زمان پوره يووالی پکې موجود وي. لنډه کيسه منظمه او مشخصه طرحه لري، يو اصلي کرکټر لري، يوه پېښه لري چې کرکټر په پېښه کې وړاندې کېږي. ټولې برخې يو له بل سره متقابلې اړيکې لري، يوه اغېزه په لوستونکو باندې ښندي، پيل او پای لري او څرګنده ده چې لنډه به وي. لنډه کيسه خپل موضوعات له روان ژوند څخه اخلي او د موضوعاتو لمن يې پراخه ده. په پښتو کيسه ليکنې کې يو لړ مشهورې څېرې لرو چې ځينې يې دادي:

راحت زاخيلی، ماسټر عبدالکريم، مير مهدي شاه مهدي، قلندر مومند، موسٰی شفيق، ميرا جان سايل، محمد دين ژواک، ګلاب ننګرهاری، امين افغانپور، منان ملګری او نور...



## فعالیتونه

۱ـ زده کوونکي دې متن په چوپه خوله ولولي او بيا دې لاندې پوښتنو ته ځوابونه ووايي:

- لومړنی پښتو لنډه کيسه چا په کوم وخت او په کوم نامه وليکله؟
- په افغانستان کې لنډه کيسه چا وليکله او په کوم نامه وه؟
- د لنډې کيسې کوم ليکوال پېژنئ نومونه يې واخلئ؟
- لنډه کيسه ولې رامنځته شوه؟

۲ـ زده کوونکي دې له ښوونکي څخه وروسته د متن يوه يوه برخه په لوړ آواز ولولي او بيا دې د لنډې کيسې د جوړښت توکي په کتابچه کې وليکي او په وار سره دې په ټولګي کې واوروي.

۳ـ هغه زده کوونکي چې کومه کيسه يې زده وي، نورو ټولګيوالو ته دې په شفاهي توګه ووايي نور زده کوونکي دې پرې بحث وکړي.

٤ـ زده کوونکي دې په وار سره د هغو کيسو او ليکوالو نومونه واخلي چې دوی لوستي دي او د کيسې لنډيز دې په خپلو خبرو کې وړاندې کړي.



## کورنی دنده

زده کوونکي دې د کورنۍ د غړو په مرسته يوه موضوع انتخاب کړي او په خپل قلم دې په هغه موضوع باندې يوه لنډه کيسه وليکي او بله ورځ دې په ټولګي کې واوروي.

# ویلیام شکسپیر ۱۵۴۶ - ۱۶۱۶م.

نړیوال ادبیات په ټوله بشري نړۍ پورې اړه لري. په دې ادبیاتو کې له بېلابېلو هېوادونو څخه مشهورې څېرې او د دوی آثار، سبکونه او ادبي مکتبونه څېړل کېږي.

په تېره بیا هغه لیکوال او آثار چې نړیوال شهرت یې موندلی او د نړۍ په ډېرو ژبو ژباړل شوي دي. د خپلې ژبې او ادب تر څنګه د نړیوالو ادبیاتو مطالعه هم اړینه ده، ځکه چې ادبیات سرحدونه نه پېژني او یو له بل څخه اغېز او اخیستنې قبلوي. لکه څنګه چې څرګنده ده نوي ادبي ژانرونه له نړیوالو ادبیاتو څخه زموږ ژبې او ادب ته راغلي دي. په پښتو ژبه کې هم د نړیوالو ادبیاتو ژباړې شوي دي. همدغه ژباړه ده چې د نورو ادبیاتو سره زموږ اړیکې پیدا کوي، خو څومره چې لازمه ده هغومره د نړیوالو ادبیاتو ژباړه په پښتو کې نه ده شوې. موږ دې ته اړ یو چې د نړۍ له ادبیاتو خبر شو او د نړیوالو ادیبانو له تجربو څخه ګټه واخلو چې د دې ګټه د ادب په غنیتوب کې بې اغېزې نه ده.

ـ تاسې د نړیوالو ادبیاتو کومه څېره پېژنئ؟

ـ تراوسه مو د نړۍ د ادبیاتو کومه نمونه لوستې ده؟

د نړۍ نامتو لیکوال او شاعر شکسپیر د بریتانیا د سترانفورد په ښار کې په یوه بزګره کورنۍ کې سترګې وغړولې. د ژوندانه په اړه یې ډېر معلومات په لاس کې نشته. په خپل پلرني کلي کې ښوونځي ته لاړ او لاتیني او یوناني ژبې یې څه ناڅه زده کړې.

څه موده یې د ښوونکي دنده ترسره کړه. شکسپیر په (۱۵۸۲م.) کال کې چې اتلس کلن و، له یوې ښځې سره یې واده وکړ چې تر ده اته کاله مشره وه. له تیاتر سره یې زیاته مینه وه او د همدغې مینې له کبله په (۱۵۸۵م.) کال لندن ته لاړ. په (۱۵۹٤م.) کال کې د تیاتر له یوې مشهورې ډلې سره یوځای شو چې د (لردچمبرلین) په نوم یادېده. زیاتې پیسې لاس ته ورغلې او په (۱۵۹۷م.) کال کې یې د سترانفورد په ښار کې ډېرې ځمکې واخیستلې.

په (۱۵۹۹م.) کال کې د نوي جوړ شوي کلوپ برخه وال شو چې د (لرد چمبرلین) بنسټ و. دغه تیاتر بیا د خپل وخت مشهور تیاتر شو. په همدې تیاتر کې د شکسپیر ډېرې ډرامې وښودل شوې او ډېره ګټه یې ترلاسه کړه.

شکسپیر په (۱۵۹۲م.) کال کې مشهور ډرامه لیکونکی او لوبغاړی شو. خپل لومړني آثار یې چې چاپ کړل، هغه منظوم داستانونه وو.

تر دې وروسته شکسپیر تر (۱٦۱۳م.) پورې په سترانفورد کې پاتې شو. دلته یې یو لړ نندارې ولیکلې چې د نړۍ مشهورې ډرامې شوې. د شکسپیر لومړني آثار تاریخي نندارې وې، لکه: شپږم هانري، دریم ریچارد او دویم ریچارد.

لومړنۍ مشهوره تراژیدي یې (رومیو او ژولیت) وه، دغه داستان چې د یوې غمجنې مینې بیان کوي په ټوله نړۍ کې مشهور شو. په دې داستان کې له دوه دښمنو کورنیو څخه د دوو مینانو مینه ښودل کېږي چې د دوی په مړینه پای ته رسېږي.

شکسپیر یو لړ کومیډي ډرامې هم لیکلي دي چې ډېرې مشهورې دي، لکه: تېروتنې، دوه نجیب زاده، د مینې بېهوده رنځ او نورې...

شکسپیر له (۱٦۰۰م.) څخه تر (۱٦۰۹م.) کلونو پورې مشهورې تراژیدي ننداري ولیکلې چې په لاندې ډول دي:

(هملت) یې په (۱٦۰۱م.) کال کې ولیکله. د شکسپیر دا ننداره د نړۍ له یوه مشهورو نندارو څخه ده. په دې ډرامه کې (هملت) د ډنمارک شهزاده د خپل پلار له مرګه وروسته د سودا په ناروغۍ اخته کېږي.

هغه ګومان کوي چې کاکا يې چې د ده له مور سره واده کړی پاچا شوی دی او د ده د پلار قاتل دی. (هملت) د انتقام په فکر کې لوېږي.

په اندېښنو کې وي او له يو ډول ترديد سره مخامخ کېږي. ډېر فکر کوي، خو نه شي کولای چې عمل وکړي. د ډرامې راز د ده په عجيبه طبيعت او اندېښنه کې دی او د څنګه او ولې پوښتنې دي چې دی ورسره مخامخوي.

(اتللو): دا ډرامه يې په (١٦٠٤م.) کال کې وليکله. د اتللو د ژوند داستان ښکاره کوي چې يو پوځي قوماندان دی او ښځه يې (دزدمونا) نومېږي. اتللو يو عسکر (کاسيو) ته يوه رتبه ورکوي يو بل سپاهي (ياګو) چې ډېر شرير انسان دی، کينه اخلي. اتللو ته په دروغو وايي چې (کاسيو) او ستا مېرمن نامشروع اړيکې لري. اتللو په غوصه کېږي او خپله مېرمن (دزدمونا) وژني. کله چې په خپله اشتباه پوهېږي، نو له خلکو څخه غوښتنه کوي چې د بې پامه سخت مين په نوم دې ياد شي.

(مکبث): دا ډرامه يې په (١٦٠٦م.) کال کې وليکله. د ډرامې اصلي شخصيت (مکبث) دی چې درې جادوګرې ورته په مرموزه توګه وړاندوينه کوي چې ته به په راتلونکې کې د سکاټلنډ پاچا شې. (مکبث) د پادشاهۍ د لاس ته راوړلو لپاره هلې ځلې پيلوي. د خپلې ښځې په مرسته پادشاه په ناځوانه توګه وژني، خو په هېڅ وجه د وينې رنګ د ده او د ده د ښځې له لاسونو څخه نه ځي. په پای کې همدغه وينه د دوی ګرېوان نيسي او سزا مومي.

(انتوني او کلوپاترا) يې په (١٦٠٧م.) کال کې وليکله. دا د شکسپير يوه بله تراژيدي وه چې کيسه يې د روم د سردار انتوني او د مصر د ملکې کلوپاترا په مينه څرخي. له (١٦٠٠م.) څخه تر (١٦٠٩م.) پورې يې يو لړ طنز ډوله ډرامې هم وليکلې. وروستۍ نندارې يې دوې کوميډۍ وې چې د (ژمي داستان) او (توپان) نومېږي. شکسپير (٣٨) نندارې وليکلې او په نړۍ کې يې د لوی ډرامه ليکونکي نړيوال شهرت ګټلی دی. د ده شعرونه د انګليسي ژبې په مشهورو شعرونو کې حسابېږي.

شکسپير د لويو غنايي شاعرانو له ډلې څخه دی. د هغه غزلې چې له (١٥٩٣م.) څخه تر (١٦٠١م.) کال پورې يې ويلي دي، د نړۍ له ښکلو غزلو څخه دي. له انسان سره د شکسپير همدردي ژوره وه او دغه احساس د هغه د ډرامو په اشخاصو کې ځلېده. د هغه شعرونو به د ننداړو اشخاصو ته تلپاتې ژوند ورکاوه. دلته د شکسپير د يوې منظومې پښتو ژباړه د بېلګې په توګه راوړو:

اې زما محبوبې!

ډېر ځله د خپل بخت له ستم او رسوايۍ نه د خلکو په منځ کې يوازې پر خپلې بېنوايۍ اوښکې څڅوم او د اسمان کاږه غوړونه په خپلو بېهوده فريادونو ځوروم. پر خپلې طالع نفرت وايم چې ولې د فلاني غوندې نه يم چې زړه يې زما له زړه نه هيله من دی او يا مې ولې څېره د هغه بل په شان نه ده چې ټولو ته په زړه پورې او د خوښې وړ دی.

په دغه حال کې له ځانه سخت بېزاره کېږم او هغه څه چې لرم يې، په هغه باندې خوشحاله کېږم، خو کله چې ستا په ياد کې ولوېږم، نو بېدريغه مې روح لکه د مرغۍ غوندې له توپاني ځمکې څخه والوزي او ستا د مينې له يادولو نه يو داسې دولت په لاس راشي چې دغه وخت يې له پادشاهانو سره په بدلېدو راته ننګ درېږي.

هر کله چې د تېرو ورځو ياد د خپلو افکارو په خاموشۍ باندې راچاپېر ووينم، نو ډېر څيزونه دي چې د هر يو په غوښتلو زيات رنځېږم. په پای کې ناهيلی شم. پخواني غمونه او ګران ياران چې په يوه بې نښانه شپه کې په مرګ پټ شوي دي، يو ځل بيا زما سترګو ته نېغ ودرېږي او زما سترګې چې په ژړا نه دي اموخته، يو ځل په اوښکو کې ډوبې شي. بيا د عشق په هغو انديښنو کې ولوېږم چې کلونه پخوا ما له خپله خاطره ايستلي دي.

هغه ستمونه مې چې په تېر وخت کې ليدلي او هېر کړي دي، له سره ورته په ګيلو شم. د تېر وخت يوه يوه شېبه شمارم او هرې يوې ته اوښکې څڅوم، داسې لکه دا دنده چې مې پخوا سرته نه وه رسولې.

خو اې زما مهربانې محبوبې! که په دغه وخت کې تا ياده کړم، نو هر ستم مې چې ايستلی هغه جبران کېږي او ټول غمونه مې پای ته رسي.

***

مرمر او د شهزادګانو مجسمې به له دې قوي شعر څخه اوږد ژوند ونه کړي او ستا نوم به په دې کرښو کې د تل لپاره ځلېږي. د هرې تيرې نقش به د زمان ناپاک لاسونه سولوي او د هرې قوي ماڼۍ بنسټ به په جنګ ويجاړ او له خاورو سره خاورې شي، خو ستا نښان به په دې دفتر کې د جنګ له ګتې او زمان څخه خوندي وي.

مرګ او دښمني چې ټول څېزونه د هېرولو ځاه ته غورځوي، ستا نوم ته زيان نه شي رسولای. ټول راتلونکي نسلونه چې د نړۍ تر وروستۍ ساه پورې به په دې جهان کې وي، ستا ستاينه به په

شونډو لري.

نو آرامه کېنه! د حشر تر ورځې چې بیا له سره ژوند پیلوې. په دې شعر کې به ژوندۍ پاتې وې او د عاشقانو په سترګو او زړونو کې به ځای ولرې.

***

لکه څنګه چې بې اختیاره څپې د ساحل خواته شړل کېږي، زموږ د عمر شېبې هم د مرګ پر لور منډې وهي. هره شېبه چې د پخوانۍ شېبې ځای نیسي، نو په دې سخت یون او زیار کې هېڅکله څنډه او پای نه قبلوي.

نوی زېږېدلی ماشوم چې د روښنايۍ له چینې څخه يې ژوند اخیستی، په پرله پسې توګه مخ ته ځي چې بلوغ ته ورسېږي، خو ډېر ژر بد زړې تیارې له هغه سره په جګړه پیل کوي چې د ځوانۍ تاج يې له سره وتښتوي.

روزګار د عمر پسرلی په توپاني خزان اخته کوي او د زړورو په ورين تندي ګونځې راپیدا کوي. د طبیعت نادره شیان خپله مړۍ کوي او د مرګ په لور د هستۍ ټول درمندونه لو کوي، خو ته اې زما محبوبې! له هر ډول ضرر څخه په امن کې يې ځکه چې د هغه د ستم لاس زما له شعر څخه لنډ دی. زما کرښې به تر ډېره تلپاتې وي لکه ستا د ښکلا ستاينه چې تا تلپاتې ساتي.

د متن لنډیز:

د نړۍ له نامتو څېرو څخه یو هم ویلیام شکسپیر دی چې له (۱۵٦٤م.) کال څخه تر (۱٦۱٦م.) کال پورې ژوندی و. دی د انګلستان د سترانفورد په ښار کې زېږېدلی و. په ښوونځي کې يې لاتیني او یوناني ژبې زده کړې.

کله چې په (۱۵۸۵م.) کال لندن ته لاړ، نو بیا د تیاتر له یوې ډلې سره وتړل شو او د ننداړو په لیکلو يې پیل وکړ. د نړۍ لوی ډرامه لیکونکی شو او ډرامو يې هم نړیوال شهرت وګاټه.

شکسپیر (۳۸) ننداړې ولیکلې چې په دې ډرامو کې تاریخي، تراژیدي، کومیډي او طنز ډوله ننداړې هم وې. د شکسپیر ټولې ننداړې مشهورې دي، خو ډېرې مشهورې يې رومیو او ژولیت، هملت، اتللو، مکبث، انتوني او کلوپاترا او نورې دي.

شکسپیر د انګرېزي ژبې وتلی شاعر هم و چې ډېرې ننداړې يې منظومې دي. د ده غزلونه خورا زيات مشهور دي او په لوړو غنايي اشعارو کې حسابېږي.



## فعالیتونه

۱ـ زده کوونکي دې د شکسپیر ژباړل شوې منظومه په وار سره ولولي او پر مفهوم دې وغږېږي.

۲ـ زده کوونکي دې د شکسپیر د مشهورو تراژیدیو نومونه واخلي او د هرې ننداري د موضوع لنډیز دې ووايي.

۳ـ د شکسپیر د شعر خوا درنه ده او که د نثر؟ زده کوونکي دې خپل نظر په څو کرښو کې ولیکي او په ټولګي کې دې ولولي.

٤ـ زده کوونکي دې د شکسپیر د پېژندګلوۍ په اړه لاندې پوښتنې ځواب کړي:

- شکسپیر د کوم هېواد و؟
- د شکسپیر ډرامې د مضمون له پلوه په کومو برخو وېشلای شئ؟
- شکسپیر شاعر و که ډرامه لیکونکی؟
- د شکسپیر لومړۍ تراژیدي څه نوم لري؟
- تاسې ته د شکسپیر په تراژیدیو کې کومه یوه په زړه پورې ده؟

په وار سره خپل نظر ټولګیوالو ته څرګند کړئ.



## کورنۍ دنده

په کور کې ټول متن په غور سره ولولئ. له لوستلو وروسته د شکسپیر د ژوند او هنر په اړه څو کرښې په خپلو کتابچو کې ولیکئ او په بله ورځ يې په پښتو درسي ساعت کې ولولئ.



# مېرمن سپينه



ښځې د ټولنې نيمه برخه جوړوي او د تاريخ په اوږدو کې له نارينه وو سره څنګ په څنګ د ژوندانه په بېلابېلو ډګرونو کې ځلېدلې دي. زموږ تاريخونه ددغسې اتلو مېرمنو په کارنامو ډک دي. د دوی اتلولۍ سرښندنې او له وياړه ډکې کارنامې زموږ د تاريخ برخې دي. کله چې د هېواد تماميت او استقلال ته خطر پېښ شوی، نو دوی د خپلو غازيانو وروڼو په څنګ کې درېدلې دي او تر سنګرونو د دوی مرستندوی شوې دي.

کله کله يې د زلمو د هڅونې او د دوی د احساساتو راپارولو لپاره نارې، لنډۍ او شعرونه هم ويلې دي چې په ډېرو حساسو شېبو کې اغېزمنې واقع شوې دي. په ادب کې د ښځو برخه ډېره درنه ده او بيا په ځانګړې توګه د وطني او ملي شعرونو برخه يې ډېره ارزښتمنه ده، ځکه چې له يوې خوا ادبي رنګ لري او له بلې خوا ملي.

زموږ په ښځينه شاعرانو کې يوه هم سپينه ده چې په دغه کتار کې راځي او ملي وطني اشعار يې تاريخونو ترموږه رارسولي دي. دادی په دې لوست کې د مېرمن سپينې په اړه لنډ معلومات لولئ.

ـ د سپينې په اړه مو څه اورېدلي يا لوستلي دي؟

ـ کومې ښځينه شاعرانې پېژنئ چې هېوادني شعرونه يې ويلي دي؟

مېرمن سپينه يوه پښتنه شاعره وه چې د وزير يار محمد خان الکوزي د حکومت په وخت کې د هرات په شاوخوا کې اوسېدله. دا پښتنه مېرمن د نور محمد خان الکوزي لور وه. هغه وخت چې ايراني لښکرو په (۱۲۵۵هـ.) کال کې هرات کلابند کړ او د هرات پښتنو له دوی سره په مېړانه مقابله کوله، نو زموږ دغه پښتنه شاعره ژوندۍ وه. د هرات محاصره يو کال او اته مياشتې اوږده شوه، خو پښتنو ځانونه تسليم نه کړل او هرات يې پرې نه ښود.

په دې جګړو کې د پښتنو سرداران شاه کامران سدوزی او وزير يار محمد خان الکوزی وو. دوی په دې جګړو کې خپل رښتيني مقاومت څرګند کړ. زموږ دغه پښتنه شاعره هم په دې ملي جګړو کې ژوندۍ وه او د پښتنو توريالیو د مېړانې په اړه يې د ملي احساساتو ډک شعرونه ويلي دي. له دغو شعرونو څخه د پښتني ښځو حماسي احساسات ښه څرګندېږي. سپينه ددغې کلابندۍ او جګړې په ټولو پېښو ښه خبره وه. د دې له شعرونو څخه څرګندېږي چې دا او د دې کورنۍ په دغه جګړه کې د افغاني اړخ په څنګ کې ولاړه وه.

سپينې ددغې جګړې ټول واقعات پخپلو سترګو ليدلي دي او پخپلو شعرونو کې يې انځور کړي دي. د نوميالي ليکوال او شاعر عبدالرؤف بېنوا د اټکل له مخې سپينه په دغه وخت کې پخه ښځه وه، ځکه چې افکار او احساسات يې هم پاخه دي، نو د هرات د کلابندۍ په وخت کې به د دې عمر له ۳۵ څخه تر ۴۰ کالو پورې و چې په دې حساب يې د زېږېدو کال د (۱۲۰۰هـ.) په شاوخوا کې اټکل کېدای شي. د سپينې له شعرونو څخه دا هم څرګندېږي چې د دې کورنۍ يا خو د وزير يار محمد خان له کورنۍ سره د خپلوۍ اړيکې درلودې او يا يې ورسره د پېژندګلوۍ اړيکې وې.

دې شاعرې په پښتو ژبه کې موږ ته يوه مفصله کيسه پرې ايښې ده چې د هرات د محاصرې منظوم تاريخ ګڼل کېږي.

په دې کيسه کې سپينه د خپلو ورونو مېړانه ستايي او په ساده او سپېڅلو الفاظو کې د دې جګړې مختلف مناظر ترسيموي. سپينې دغه پېښې د مثنوي په چوکاټ کې راخيستي چې ځينې برخې يې بشپړې نه دي. سپينه د دې مثنوي لومړۍ برخه په حمد او نعت پيل کوي

او ورپسې د حضرت محمد ﷺ د یارانو ستاینه کوي.

په دویمه برخه کې د پاچا او وزیر ستاینه کوي. په دریمه برخه کې د سدوزو د پاچاهۍ لنډه تاریخي یادونه کوي او په څلورمه برخه کې د کلابندۍ د جګړې حال انځوروي.

دلته مونږ له هرې برخې څخه ځینې شعرونه غوره کوو:

لومړۍ برخه:

لـومړی ثښتن د ټـول عـالـم ستایمه بـیـا مـحـمـد رســـول اکـــرم ستایمه

درود پـه واړو اصـحـابـانـو دې وي د پـاک نـبـي پـر ښـو یـارانـو دې وي

دویمه برخه:

اوس نو شـروع کـړم د پاچا په صفت زمـوږ شاهـزاده دی ننګیالی په غیرت

دی دی ډیــوه د ســـدوزو د ټبر په څړبنو کـې نـن دی دی لکه لمر

د احـمـد شـاه غـازي پښتون لـه کـوره نـن دی کـامـران شـهـزاده کښلې تـوره

دریمه برخه:

راســـه چـې تـاتـه حـکـایـت کـومـه د ســــدوزو د سـلـطـنـت کـومـه

پـخـوا تـر دې وو د هــرات پاچاهان د ســـدوزو ذوالـفـقـار زمـــان خـان

څلورمه برخه:

د هرات د کلابندۍ حال

غــلــیــم پـــر ښــهــر بــیــا هـــجـــوم راوړی
مـــخ تـــه یـــې ولاړ دی یـــار مـحـمـد پـیـــاوړی
زمـــــوږ پـــښـــتـــانـــه لـــکـــه زمـــــري جـنـګـیـړي
ولــــې د ویـــنـــو پـــر حـــصـــار بـــهـــیـــږي
هـــــرات پـــه ویـــنـــو د پـــښـــتـــون شـــو ګـــلـــرنـــګ
پـــښـــتـــون زخـــمـــي دی د غـــلـــیـــم پـــه خـــدنـــګ

یار محمد وایي پښتنو زما زمرو
ټوله راووځئ وسله دار له کورو
په غلیم وکړئ یو هجوم ګرندی
هرات له لاسه په ژوندون مه باسئ
دا خو زمونږ کور دی زمونږ وطن دینه
دا زمونږ ټاټوبی زمونږ مامن دینه
کفن په غاړه دا وطن وساتئ
زمونږ د پلرو ښکلی مدفن وساتئ
دلته پراته دي ننګیالي نیکه ګان
دلته بهیږي وینې تل د افغان
هرات زمونږ دی زمونږ کور دینه
زمونږ نغری دی زمونږ ګور دینه
دښمن راغلی تر دیواله د کور
ولاړ سئ دا دی د پښتون لوی پیغور
کامران ناري کړي چې پښتون قامه
توره راباسه مړه پر ننګه نامه
مه بایله ځان اوسه ولاړ پر حصار
د پښتانه پر ننګه ځان کړه ایثار
بویه غیرت چې مو ناموس خوندي سي
نوم د پښتون د ولس خوندي سي
زلمو چې واورېدې ناري غلبلې
له یار محمده او کامرانه دلې
له کلا وواته زمریانو په خېر
پر دښمنانو یې جوړ کړ لټېر

سـرونـه يـې غـوځ كـړه د دښـمـن پـه تـوره
مـور يـې كـړه پـر غـلـيـمـانـو بـوره
دښـمـن شـو مـات راغـي دوران د كـامـران
د يـار مـحـمـد د بـري سـتـوري ځـلان

د متن لنډيز:

سپینه د هرات یوه پښتنه شاعره وه. د یار محمد خان الکوزي په وخت کې یې ژوند کاوه. دا د نور محمد خان الکوزي لور وه. کله چې په (۱۲۵۵هـ.) کې ایرانیانو د هرات ښار محاصره کړ او پښتنو د کامران سدوزي او وزیر یار محمد خان الکوزي تر مشرۍ لاندې په مېړانه وجنګېدل، نو دې شاعرې ددغې جګړې حالات د مثنوي په بڼه چې د پښتو ژبې یوه حماسه ده، انځور کړل. دا حماسه په سلګونو بیتونو کې ویل شوې ده، خو موږ ته یې ډېره کمه برخه رارسېدلې ده. د سپینې پښتنې شاعرې حماسي احساسات په دغه حماسه کې ډېر پیاوړي دي.

وینا یې د حماست یوه ټوټه ده. د سپینې نور اشعار موږ ته نه دي رارسېدلي. یوازې ددغې منظومې ځنې ټوټې تر موږه رارسېدلي دي. د دې د شعرونو له مضامینو څخه داسې ښکاري چې سپینه یوه عالمه او فاضله ښځه وه او هم د پښتنو په حال او تاریخ خبره مېرمن وه. که څه هم اشعار یې ټول تاریخي دي، خو تاریخي پېښې د حماسې په بڼه بیانوي. شعرونه یې روان، خواږه او د پوهېدنې وړ دي.

## فعالیتونه

۱ــ زده کوونکي دې د درس له لوستلو څخه وروسته لاندې پوښتنې ځواب کړي:

- سپینې څه وخت او چېرته ژوند کاوه؟

- د سپینې شعر په کوم شعري چوکاټ کې ویل شوی او موضوع یې څه ده؟
- تاسې د سپینې د شعر په څېر له کوم بل شعر سره آشنا یاست؟ د شاعر نوم او موضوع یې روښانه کړئ.

۲ــ زده کوونکي دې له ښوونکي څخه وروسته شعر په لوړ آواز ولولي او مفهوم دې په خپلو خبرو کې څرګند کړي.

۳ــ زده کوونکي دې دغه پېښه او د شعر مهم ټکي په خو کرښو کې ولیکي او بیا دې په ټولګي کې واوروي.

۴ــ زده کوونکي دې لاندې لغتونه معنا او په جملو کې وکاروي:

غلیم، هجوم، پیاوړی، حصار، ټاټوبی، مامن، مدفن، ایثار، لټیر، بوره.

۵ــ په شعر کې خاص نومونه او صفتونه په نښه کړئ.

خاص نوم: هغه دی چې خاص څیز او خاص نوم نوموي لکه رحمان بابا، خوشحال خان ختک، مېرمن ملاله.
صفت: د نوم څرنګوالی څرګندوي. لکه: تور، سپین، ښه، بد او نور...

۶ــ د سپینې له حماسې پرته په پښتو ژبه کې نورې کومې کومې حماسې پېژنئ نومونه یې له ویونکو سره واخلئ؟

۷ــ تاسې له سپینې پرته نورې کومې اتلې مېرمنې پېژنئ، نومونه یې له کارنامو سره بیان کړئ؟



## کورنی دنده

زده کوونکي دې په ټولنه کې د ښځو د رول په اړه یوه لنډه لیکنه وکړي او په بله ورځ دې په پښتو درسي ساعت کې خپلو ټولګیوالو ته واوروي.



# کاڼه
## (لنډه کیسه)



نشان

(مهدي)

په پښتو ادب کې لنډه کیسه د شلمې پېړۍ په دویمه لسیزه کې پیل شوه. لومړنی بنسټ ایښودونکی یې سید راحت زاخیلی دی. بیا وروسته د لنډې کیسې لیکلو لړۍ وغزېده او ډېرو لیکوالو لنډې کیسې ولیکلې، لکه: ماسټر عبدالکریم، میر مهدي شاه مهدي، قلندر مومند، موسی شفیق، حبیب الله تږی، محمد دین ژواک، امین افغانپور او نور...

اوس په پښتو ادب کې د لنډو کیسو په سلګونو مجموعې شته او له یوې ورځې نه بلې ته وده او پراختیا مومي. لنډه کیسه د هنري نثر یو په زړه پورې ډول دی چې د ژوندانه بېلابېلې پېښې انځوروي. که د کیسو لوستل له یوې خوا د وخت تېرولو سره تړاو لري، نو بنسټیز مقصد یې ښوونیز دی. موږ باید له کیسې لوستلو څخه پند واخلو. ښه اړخونه یې په ژوند کې پلي کړو او له بدو اړخونو څخه یې ځانونه وژغورو. دلته د (کاڼه) په نوم د میر مهدي شاه مهدي یوه لنډه کیسه تاسو ته وړاندې کوو:

- تاسې د کوم لیکوال کومه کیسه لوستې ده؟
- تاسې کولای شئ د خپل ژوند یوه کیسه ټولګیوالو ته په شفاهي ډول ووایئ! ؟

دومره مې یاد شي چې ډاکټر وویل: د ده محرقه ده.

نور بیا هغه وخت پوه شوم چې زما نظر بې انتها تېز شو. د لیدو او اورېدو طاقت مې له اول نه یو په لس زیات شو. خو حیران په دغه وم چې ګېرچاپېره په کوټه کې د ښځو ژړا وه. څوک خو لا په ما راپرېوتی و او په ساندو کې به یې ویل: خدای دې وبخښه!

تا له دې خدای اته واړه جنتونه درکړي.

ما به ورسره په زوره امین وکړو، خو ما به داسې محسوسه کړه لکه چې دوی زما امین نه وي اورېدلی.

خدای خبر چې دغه سلسله به څومره جاري وه چې په دې کې زما د کورنۍ یو څو کسان زما کټ ته مخامخ کېناستل او هغه یو کس پکې وویل:

ـ هسې د غورځولو سړی نه دی، ښه یاد سړی دی چې مړی درنه سپک نه شي.

یو بل پکې آواز وکړو: ده هم ډېره موده د خلکو خوړلې ده. نن به ورله دا ټول بدل په یو ځل خلاصوو.

همدغه شان په لږ ساعت کې ټولې جرګې دا فیصله وکړه چې څومره کېدای شي، نو مړی به یې درنوو.

دغلته زما په زړه نوره نه ځائیده. په اوچت آواز مې دغې جرګې ته وویل:

ـ اې زما خپلو خپلوانو مسلمانانو تاسو ته معلومه ده چې زما په کور کې یوه پیسه هم نشته. په قرضونو کې تر سره ډوب یم. بچي مې ماشومان دي. ښځه مې کونډه شوه. زما غوندې غریب د پاره چې څنګه د اسلام فیصله ده، هغه شان وکړئ او هغه دا چې په کفن ضروري کې مې ښخ کړئ چې زما جامې دي. د قرضونو له وجې تاسې زما لازمه فدیه نه شئ ادا کولی نو خیرات خو لا لویه خبره ده. زه لا لګیا وم نورې خبرې مې هم کولې، خو په دغه کې د یوې زنانه په ژړغوني اواز کې وویل شو: لالا هر چا چې پیسې ولګولې نو یوازې دا کور یې پاتې دی. دا به په قرض کې ورپسې ولیکم. خو اوس درنه مړی بې عزته نه شي.

ما خپل اواز نور هم په زوره کړ چې د وړو مور یې واوري، خو زما دا خیال راغلو چې دا ټول کانه دي. زما جنازه چې اوچتېده، نو دومره مې واورېدل چې د حلوا او وریژو دېګونه پاخه دي.

هغه وخت هم ما یوه چیغه ووهله چې: دغه هر څه حرام دي.
خو دغه خلك هم ټول کاڼه وو.
کوم وخت چې جنازه وشوه، نو سخات ته خلك کېناستل او کله چې سخات وېشل کېده نو ما آواز وکړو:
ـ زه مرض وصیت ته نه یم پرېښی او که لږه موقع راته په لاس راغلې وای نو ما به د قرضونو په رڼا کې وصیت کولو. خو اوس تاسې څه کوئ!
ولې زما بچي خواروئ؟
خو دلته هم زه یوه شوم چې دا ټول خلك کاڼه وو. څکه چې ما خبرې کولې او هغوی یو بل ته سخات بخښلو او کوم وخت یې چې سخات تقسیمولو نو عجیبه خبره پکې دا وه چې غریبانو ته لس روپۍ او مالدارو ته پکې پنځوس روپۍ وې. د سخات د تقسیم نه وروسته چې زما جنازه اوچته کړی شوه او د قبر په څنډه کېښودل شوم، نو ماته خپله تور سرې او واړه بچي او د دوی غریبي رامخکې شوه. ما لا د دوی په غریبۍ او بې‌وسۍ ژړا کوله چې په دې کې زه په قبر کې کوز کړی شوم او په لږ ساعت کې راباندې د خاورو غر جوړ کړای شو. خو زه حیران په دغه وم چې ماته په قبر باندې بېل بېل سرې ښکارېدو. د هغوی خبرې مې اورېدې. ما باالکل خپل ځان د هغوی په منځ کې ولاړ لیدو. کوم وخت چې په قبر د قرآن کریم تلاوت شروع شو نو زما زړه خوشحاله شو.
ما ویل اوس به دغه ټول مسلمانان د قرآن کریم د هدایاتو په رڼا کې زما د غریبانو بچو او تور سرې لپاره څه بندوبست وکړي او هغه وخت، خو نور هم ډېر خوشحاله شوم چې په ټولو کې یو مشر عالم مسئلې ته پاڅېده. په دغه وخت کې دا اواز هم وشو چې: تاسو خدای وبخښه! فاتحه به د خیرات په ځای کې اخیستل کېږي.
خدای خبر چې ما به د دغه تقریر په هکله نور څومره سوچ کولو چې په دې کې ملا صاحب د میراث په مسئله شروع وکړه او وې ویل:
ـ که چېرې مال یې پاتې نه وي نو تجهیز تکفین د مړي اول د ده په نژدې خپلوانو دی، که خپلوان یې نه وي او یا بې وسه او غریبان وي، نو په بیت المال باندې او که بیت المال نه وي، نو بیا په ټولو مسلمانانو دی.
هغه لا خپل تقریر کولو چې زما زړه را ډک شو. صبر مې ختم شو او چې په ځان

پوهېدم، نو هغه مې د مرۍ نه نیولی و او ما ورته په غوصه کې ویل چې: ولې دا زه درته مومن مسلمان نه ښکارېدم څه؟

گور کفن مې په تاسو کېدو او کور مو زما لوټ کړو.

زه هم لگیا وم او هغه هم لگیا و، خو زما خبره نه هغه اورېده او نه نورو خلکو.

او چې یو څو ورځې پس زه خبر شوم چې زموږ د کلي غریب الله کاکا مړ شو او بچو ته یې په غیر د قرضونو او لوږو نور څه پرې نښودل، نو د نورو خلکو غوندې زه هم د هغه په قبر کوڼ ولاړ وم.

د لیکوال پېژندگلوي:

سید میر مهدي شاه مهدي د پښتو ژبې له نومیالیو کیسه لیکوالو څخه دی. دی د پښتونخوا د داودزو د سیمې کنکوله نومې کلي کې په درنې علمي کورنۍ کې وزېږېد. د زېږېدو نېټه یې ۱۹۲۶م. کال دی او په (۱۹۹۴م.) کال یې له نړۍ سترگې پټې کړې. د پلار نوم یې سید عبدالتواب شاه دی چې د خپلې سیمې مشهور عالم و. مهدي شاه د خپل وخت مروجه علوم ولوستل او له لیکوالۍ سره یې د ژورنالیزم په ډگر کې کار پیل کړ. مهدي شاه د ژوند تر وروستیو شېبو پورې په مختلفو جریدو او مجلو کې د لیکوال او مدیر په توگه کار وکړ. دی د خدایي خدمتگارانو د غورځنگ یو فعال غړی و او د مبارزې په لړ کې یې ډېر زندانونه گاللي دي. د ده د کار اصلي برخه کیسه لیکنه وه، خو د دې تر څنگه شاعر هم و. د ده داستانونه د پښتنو د سیاسي او تاریخي ژوند عکاسي کوي چې ټولې کیسې یې د انگرېزي ښکېلاک او په راوروسته کې د جابرو حکومتونو په وړاندې د پښتنو د مبارزو او قربانیو څرگندونه کوي.

د مهدي شاه مهدي د لنډو کیسو یو شمېر کتابونه چاپ شوي دي، چې په لاندې ډول دي: نشان، د بوډۍ ټال، پت، لاله گلونه، تور داغونه. د شعرونو مجموعه یې د (روڼ سحر) په نوم ده. مظلوم امام یې د کربلا د پېښې تاریخي بیان دی. د قرآن کریم د فاتحې د سورې ژباړه یې هم په پښتو کې چاپ شوې ده.

د متن لنډیز:

د مهدي شاه مهدي په دغه لنډه کیسه کې هغه دودونه غندل شوي چې اسلامي شرعي بنه نه لري او په خلکو کې د یوه دود په ډول رارون دي. له دغو دودونو څخه یو هم هغه بې ځایه او اضافي لګښتونه دي چې د مړي په وخت کې یې خلك د سیالۍ له مخې کوي. په دغه وخت کې د مړي خپلوان خپله غریبي او بې وسي له پامه غورځوي، خو په زیاتو لګښتونو غواړي چې خپل مړی درونډ وښیي او په سیالۍ کې له چا نه وروستو نه شي. په داسې حال کې چې د مړي درنښت د هغه په اعمالو پورې اړه لري.

په دې وخت کې د کورنۍ غړي یا وارثان که غریب هم وي ځانونه پوروړي کوي او د مړي سخات او خیراتونه په لوړ شان کوي. پایله یې دا وي چې بچې یې خوار و زار کېږي او تر عمره له پوره نه خلاصېږي. مهدي شاه هم دې خبرې ته ګوته نیولې او ویلي یې دي چې د مړي په مراسمو کې د اسلامي شریعت سره سم عمل وکړئ او بې ځایه دودونو ته غاړه مه ږدئ.

دا کیسه په فني لحاظ هم یوه بشپړه کیسه ده چې پېښنه یې زموږ د روان ژوند نماینده ګي کوي. د ویلو ژبه یې خوږه او روانه ده. کرکټرونه یې هم بېګانه نه دي او تلوسه هم پکې شته.



## فعالیتونه

۱ـ زده کوونکي دې په وار سره کیسه په لوړ غږ ولولي او د کیسې مفهوم دې په خپلو خبرو کې څرګند کړي.

۲ـ که زده کوونکو ته ورته کومه کیسه معلومه وي او یا یې په چم او ګاونډ کې تېره شوي وي، په ډېر لنډیز سره دې په خپلو کتابچو کې ولیکي او په ټولګي کې دې واوروي.

۳ـ زده کوونکي دې د کیسې متن په غور سره ولولي او نومځرې دې په نښه کړي. بیا دې په ټولګي کې ولولي.

ضمیر: هغه کلمه ده چې د نوم پر ځای استعمالیږي یا د نوم د تکرار مخه نیسي، لکه: زه، ته، هغه.
ملکي ضمیرونه: هغه دي چې د ملکیت څرګندونه کوي، لکه: ستا، زما، د دوی.
استفهامي ضمیرونه: هغه دي چې پوښتنه کوي، لکه: څوک، چېرې، کوم او نور...

٤ـ زده کوونکي دې لاندې پوښتنې ځواب کړي:

- په پښتو ژبه کې کوم کیسه لیکونکي پېژنئ، نومونه یې واخلئ؟
- د کیسو لوستل څه ګټه لري؟
- تاریخ او کیسه څه توپیر لري؟
- د مهدي شاه د لنډو کیسو د ټولګو نومونه کوم دي؟

۵ـ د مهدي شاه ددغې کیسې په اړه خپل نظر څرګند کړئ او ستاسې د خوښې وړ ټکی خپلو ټولګیوالو ته ووایاست.




زده کوونکي دې د کورنۍ له غړو یو کیسه واوري او بیا دې په خپل قلم ولیکي. په بله ورځ دې په پښتو درسي ساعت کې ولولي.

# لفظي صنعتونه




د بدیع علم د عباسیانو په وخت کې رامنځ ته شو چې بیا له عربي نه فارسي، پښتو او نورو ژبو ته راغی. له همدې کبله ټولې اصطلاحګانې یې هم عربي دي. لومړنی سړی چې بدیعي صنعتونه یې راټول کړل او کتابي بڼه یې ورکړه عبدالله بن معتز و. تر ده د مخه د عربو شاعرانو دا علم نه پېژانده. عبدالله بن معتز په (۲۸٤ هـ) کې په دې کار لاس پورې کړ او د (البدیع) په نوم یې د بدیع د علم کتاب تالیف کړ. وروسته بیا نورو لیکوالو هم په دې برخه کې کتابونه ولیکل او دا علم دود شو. په پښتو ژبه کې هم په دې اړه ډېر کتابونه لیکل شوي دي. لکه د عبدالرؤف بېنوا ادبي فنون، د سید تسنیم الحق کاکاخیل روح ادب، د عبدالحلیم اثر سالارزي پښتو ادب، د سمندر خان سمندر د ادب مناره، د نور احمد شاکر بدیع او بیان او نور. دا دی په دې درس کې به د بدیع د علم او صنعتونو په اړه یو لړ معلومات ولولئ.

ـ د بدیع علم څه ته وایي؟

ـ د شعر لفظي او معنوي ښکلاوې څه ډول وي؟

بدیع عربي کلمه ده. په لغت کې نوي شي ته وايي. په اصطلاح کې هغه علم دی چې د هغه په واسطه د کلام د ښه والي وجه څرګندېږي. بدیع دوه ډوله صنعتونه لري: لفظي او معنوي. لفظي ښکلاوې هغه دي چې له لفظ سره سروکار لري او معنوي هغه دي چې د معنا رعایت پکې کېږي. لفظي صنایع په لاندې ډول دي:

۱_ توشيح: هغه ادبي صنعت ته ويل کېږي چې د شعر د بيتونو يا مسرو لومړي توري سره يوځای شي، له هغه څخه نوم، مسره، بيت يا کومه جمله جوړه شي، لکه په دې لاندې شعر کې:

| | |
|---|---|
| ګمراهانو سره مه ګډېږه ځان | فرمايلي دي نبي اخر زمان |
| له فضولو بدکارانو صحبت مه کړه | بل خبرې ته غوږ مه بږده د نادان |
| مدام ګرځه په مجلس کې د نيکانو | قايم اوسه په خپل دين کې مسلمان |
| له ګناه به منزه وي هغه څوک | چې ثنا صفت تل وايي په زبان |
| ورکول بل ته د خدای په نامه ښه دي | په قرآن کې داسې وايي پاک سبحان |

که دې ګنج لکه قارون په دنيا ډېر شي
بې کفنه توښه نشې ورځی د ځان

پورتنی شعر ګل ملوک پخپل نامه ويلی دی، که د ټولو بيتونو لومړي توري سره يوځای شي، ګل ملوک ځنې جوړېږي.

۳_ تجنيس: هغه صنعت ته وايي چې شاعر په خپل کلام کې داسې کلمې راوړي چې شکل يې يو او معنا يې بېله وي، لکه داود خان چې وايي:

| | |
|---|---|
| چې د چا په زړه کې اور د مينې بل شي | په وربل يې لمبې ګډې حال يې بل شي |
| اور د مينې کله مري د زړه له مينې | د وربل مينه که تل د زړه په تل شي |

د لومړي بيت په لومړۍ مسره کې (بل) د اور د لګېدلو په معنا دی او په دويمه مسره کې (بل) د بدل په معنا دی. دواړه کلمې په شکل کې يو ډول دي خو معناګانې يې بېلې دي. د دويم بيت په دويمه مسره کې لومړی (تل) د همېشه او دويم (تل) د بېخ په معنا دی.

تجنيس په اووه ډوله دی لکه: تام، ناقص، زايد، مرکب، مکرر، مطرف او خطي تجنيس. دلته يې د ځينو ډولونو مثالونه راوړو:

تام تجنیس: هغه تجنیس دی چې شاعر په خپل کلام کې داسې دوې کلمې راوړي چې شکل یې یو او معنا یې بېله وي لکه پیر محمد کاکړ چې وایي:

فراق په ما خوري د زړګي وینې     آشـنا مې نشـــته الله مې وینې

په لومړۍ مسره کې (وینې) د وینو په معنا او په دویمه مسره کې (وینې) د لیدلو په معنا دی.

ناقص تجنیس: هغه تجنیس دی چې د متجانسو کلمو شکل یو او معنا یې بېله وي، خو په حرکاتو کې توپیر ولري، لکه:

د یار غم راسره څه وایم چې څه کړي     تــل مې وینې د زړه روي لکه روې

چې پـــخوا تر قضا خپله رضا غواړې     بېهوده په لــوټو ولې آســـمان ولې

د لومړي بیت په دویمه مسره کې لومړی (روي) د رودلو په معنا او دویمه (روې) د یو ډول کوچني حیوان په معنا دی چې دا کلمې په حرکاتو کې توپیر لري. په دویم بیت دویمه مسره کې لومړی (ولې) د پوښتنې ضمیر دی او دویم (ولې) د ویشتلو معنا ورکوي چې دواړه کلمې په حرکاتو کې توپیر لري.

مرکب تجنیس: هغه تجنیس دی چې د متجانسو کلمو څخه یوه کلمه بسیطه او بله یې مرکبه وي. مرکب تجنیس په دوه ډوله دی. متشابه مرکب او مفروق مرکب.

الف: متشابه مرکب: هغه دی چې بسیطه او مرکبه کلمه دواړه یو ډول شکل ولري.

لکه احمد شاه بابا چې وایي:

ســـتا پرمــخ باندې اوربل دی     ځکه اور بل مې په ګوګل دی

په لومړۍ مسره کې (اوربل) د تندي ویښتانو یا پیکي ته وایي او یوه بسیطه کلمه ده خو په دویمه مسره کې (اور بل) له (اور) او (بل) څخه یوه مرکبه کلمه ده چې (اور) او (بل) بېلې معناګانې لري.

ب: مفروق مرکب: هغه تجنیس دی چې بسیطه کلمه د بسیطې او مرکبه د مرکبې شکل ولري، لکه په لاندې بیت کې:

چې پـــه ســـترګو څراغ ووینې پتنګ     څو ونه مري له ژوندونه وي په تنګ

په پورتني بیت کې پتنګ بسیطه کلمه او (په تنګ) مرکبه کلمه ده.

قلب: قلب په لغت کې سرچپه کولو ته وایي، په اصطلاح کې د دوو یا زیاتو داسې

کلمو راوړل دي چې توري يې په بڼه (ډول) او عدد کې يو ډول او په ترتيب کې اوښتي وي، لکه:

د دوران لـه انـقلابه لا بقا شي اعتماد به دانا څه په دا اقبال کا

په پورته بيت کې د ((لا بقا)) کلمه په ((اقبال)) اوښتې ده.

ترصيع: عربي کلمه ده. په لغت کې د جواهرو ايښودلو ته وايي، په اصطلاح کې که يو شاعر خپل يو بيت په څو برخو ووېشي او هره برخه يې د بلې په مقابل کې راوړي او په وزن کې سره يو وي، ترصيع بلل کېږي.

دلـــبــــران يــــې خـــادمـــان خـــرقـــه بـــــدوش شـــول
ســــــروران يـــې غـــلامـــان حـلـقـه بـگـــوش شـــول

* * *

څـــوک چـــې دنـيـــا غـــــواړي هـغـه رنـځـــور دی
څـــوک چـــې عـقـبـا غـــــواړي هـغـه مـــزدور دی

په پورته مثالونو کې ګورو چې شاعر خپله وينا په متناظرو کلمو يا فقرو باندې ويشلې او يوه برخه يې د بلې په مقابل کې راوړې ده.

سجع: سجع په لغت کې د کوترې موزون اواز ته ويل کېږي او په اصطلاح کې د جملو يا فقرو وروستۍ هم اهنګۍ ته سجع ويل کېږي. سجع په نثر کې راځي او دغه ډول نثر ته مسجع نثر ويل کېږي.

د خوار يا ژړا ده يا ښېرا

تضمين: هغه صنعت ته وايي چې شاعر د سند او مثال په توګه يا د خپل کلام د تقويې لپاره د مضمون اړوند د بل چا د نظم يوه ټوټه، نيم بيتي، يو بيت يا څو بيتونه راوړي، لکه:

دا دنـيـــا ده خـــدای لـه عـشـقـه پـيـدا کـړې
دې چـمـن پـه دې نـسـيـم ده پـــرده سـپـړې

په پورته بيت کې لومړۍ مسره د رحمان بابا او دويمه مسره د حميد مومند ده. حميد پخپل دغه بيت کې د رحمان بابا نيم بيتي راخيستې او تضمين کړی يې دی.

د رحمان بابا اصلي بیت دادی:

دا دنیا ده خدای له عشقه پیدا کړې
د جمله و مخلوقاتو پلار دی دا

د متن لنډیز:

د بدیع علم د عباسیانو په وخت کې دود شو. د دې علم بنسټ ایښودونکی عبدالله بن معتز و. نوموړي د لومړي ځل لپاره ادبي صنعتونه راټول کړل او یو کتاب یې د (البدیع) په نامه تالیف کړ.

له ده نه وروسته نورو کسانو هم په دې برخه کې کتابونه ولیکل. بدیع هغه علم دی چې د هغه په واسطه د کلام د ښه والي وجه څرګندیږي. په بدیع کې دوه ډوله ادبي صنعتونه څېړل کېږي چې یو ډول یې لفظي صنایع دي او بل ډول یې معنوي صنایع. په لفظي صنایعو کې د لفظ رعایت کېږي او په معنوي کې له معنا سره سروکار لري.

په لفظي صنایعو کې مو ځینې ډولونه وپېژندل او معنوي صنایع به په جلا لوست کې ولولئ. لفظي او معنوي صنایع د منځنۍ دورې شاعرانو پخپلو شعرونو کې ډېرې راوړې دي او د پښتو کلاسیک دیوانونه پرې ډک دي. د ادبي فنونو په برخه کې پښتنو لیکوالو او څېړونکو هم یو شمېر کتابونه لیکلي او د شعر د فنونو په برخه کې یې څېړنې کړې دي. لکه عبدالرؤف بېنوا، سمندر خان سمندر، سید تسنیم الحق کاکاخیل، عبدالحلیم اثر سالارزی، نور احمد شاکر او نورو... په اوسني معاصر شعر کې اوس دغو صنعتونو ته دومره پاملرنه نه کېږي او په شعر کې په تخیل، انځور، وزن، اهنګ، مفکوره او عاطفه باندې حساب کېږي.



## فعالیتونه

۱ـ زده کوونکي دې له ښوونکي څخه وروسته په وار سره متن په لوړ غږ ولولي او بیا دې لاندې پوښتنې ځواب کړي:

- د بدیع د علم بنسټ ایښودونکی څوک و؟
- د بدیع علم څه ته وایي او له څه شي نه بحث کوي؟
- لفظي صنایع څه ته وایي؟
- معنوي صنایع څه ته وایي؟

۲ـ زده کوونکي دې لاندې شعر په غور ولولي او په هغه کې دې ادبي صنعت پیدا کړي چې په کومو کلمو کې راغلی دی:

| | |
|---|---|
| پلو واخـلـه لـه سپوږمۍ مخه مېرمنې | ستا بې مخه راته شپې دي ورځې سپینې |
| ستا له وره تللای نه شوای هورې دورې | درته ناست یم په دربار پرې مې دي سپینې |
| درست بدن مې د بېلتون په اور کې وریت شو | په ګوګل کې مې وېلېږي تـورې سپینې |
| زه پـښـتـون یـم نـه وېـرېـږم لـه رقیبه | ورتـه وبـه کـړم بیا ښې سپینې سپینې |

مـشـرقي دې پـه تـیـاره د بېلتون ژاړي
ورتـه لمر د مخ ښکاره کړه په مخ سپینې

۳ـ زده کوونکي دې متن په چوپه خوله ولولي او په متن کې دې خاص نومونه، صفتونه او ضمیرونه په نښه کړي. بیا دې یې په وار سره په ټولګي کې واوروي.

۴ـ زده کوونکي دې د تجنیس تعریف وکړي او ودې وایي چې تجنیس څو ډوله دی؟



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې په خپله خوښه له یوه دیوان څخه یو شعر ولیکي او په هغه کې دې لفظي صنعتونه پیدا کړي، په بله ورځ دې په پښتو درسي ساعت کې ولولي.

# هجري او د هغه حبسيات



حبسيات يا حبسيه شعرونه په ادبياتو کې هغو شعرونو ته ويل کېږي چې شاعر په زندان کې ويلي وي. په دې شعرونو کې د زندان کړاوونه، سختۍ او له کور کلي نه د لرېوالي ستونزې انعکاس مومي.

په پښتو کلاسيک شعر کې دا لړۍ خوشحال خان خټک هغه وخت پيل کړه چې د مغلي پاچا اورنگزيب له خوا د هند د رنتبور په زندان کې بندي شو. بيا ورپسې د ده زوی اشرف خان هجري چې د همدغه پاچا په حکم د گواليار او بيجاپور په زندانونو کې څوارلس کاله زنداني شو، نو د حبسياتو دغه لړۍ يې پسې پراخه او غني کړه. اوس موږ په پښتو ادبياتو کې د حبسياتو درنه برخه د هجري په ديوان کې مومو چې د څوارلسو کالو د زندان سوي نارې دي. يو خوا د زندان کړاوونه او بل خوا له وطن او کورنۍ نه لرېوالی د هجري د شعر عامه موضوع ده. په دې لوست کې به د اشرف خان هجري د ژوند او د ده د حبسيه شعرونو په اړه معلومات ترلاسه کړئ.

ـ تاسې ته د حبسيه شعرونو کومه نمونه زده ده؟

ـ حبسيه شعرونه له نورو شعرونو څه توپير لري؟

اشرف خان هجري د خوشحال خان مشر زوی دی. په (۱۰٤٤هـ.ق.) کال د روژې په میاشت کې زېږېدلی دی. کله چې خوشحال خان زنداني شو، نو اشرف خان د خپلې قبیلې سردار و. د اشرف خان بل ورور بهرام خان غوښتل چې د قبیلې سردار شي، نو په دې توګه یې په دسیسو لاس پورې کړ. دا وخت خوشحال خان د مغلو له بند نه خلاص شوی و. بهرام خان له مغلو سره لاس یو کړ او د خپل پلار او ورور په وړاندې یې سازشونه او دسیسې پیل کړې. څرنګه چې له یوې خوا د بهرام خان سازشونه وو، نو له بل پلوه د کابل صوبیدار امیر خان هم له اشرف خان نه خوابدی و. د امیر خان د خوابدۍ دوه علتونه څرګند دي، یو دا چې امیر خان چې کله کابل ته روان و، نو له اشرف خان نه یې غوښتنه وکړه چې له ده سره لاړ شي، خو اشرف خان یې غوښتنه ونه منله او ورسره لاړ نه شو. بله وجه دا وه چې د اشرف خان یو خېښ ازادګګیانې د امیر خان له حکم نه سرغړونه کړې وه او اشرف خان هجري دی په لاس ورنه کړ، بلکې دی یې سوات ته ولېږه او د ده کورنۍ یې له ځان سره وساتله.

بل دا چې د مغلو د حکومت اوامرو ته بهرام خان لاس په نامه ولاړ و، نو په دې توګه صوبیدار له پاچا نه د اشرف خان د بندي کېدو اجازه وغوښتله. پاچا اجازه ورکړه او صوبیدار اشرف خان هجري په ډېر نیرنګ د سید بهولا په کور کې په (۱۰۹۲هـ.) کال کې ونیو او هند ته یې بندي واستاوه. اشرف خان هجري لومړی په ګوالیار او بیا په بیجاپور کې څوارلس کاله زنداني شو. هجري له دیارلسو کالو زیاته موده په زندانونو کې تېره کړه او هماغلته په (۱۱۰٦هـ.) کې وفات شو.

اشرف خان هجري د خپل وخت منلی شاعر و. په پښتو او فارسي کې د شعرونو دیوانونه لري چې چاپ شوي دي. د ده په اشعارو کې د عشقي، اخلاقي او اجتماعي مضامینو تر څنګه د وطن یاد او له هېواده د جلاوالي حسرتونه او نارې تر بلې هرې موضوع ډېر دي. هغه وخت چې دی نیول کېږي او د هند پر لورې یې بیایي، نو کله چې یې پر اټک اړوي دا چیغه کوي:

ما هاله ماتم د ځان وکړو په وینو
چې اټک وته مې شاه کړه په ژړا شوم

اشرف خان هجري پخپلو شعرونو کې خپل تخلص، هجري، روهي او اکرم راوړی دی. د هجري شعرونه له درده ډک دي، د وطن یاد، د زندان مشقت او له خپلوانو لرې والي د ده شعر ته ځانګړی خوند ورکړی دی چې همدا رنګ یې په قصیدو کې هم تر سترګو کېږي. په قصیده ویلو کې ډېر غښتلی دی او په پښتو ادب کې یې ساری لږ لیدل کېږي.

د حبسیاتو برخه یې ډېره درنه ده او د ګوالیار کلن زندان یو بشپړ انځور وړاندې کوي.

د ده حبسیات له سوزه ډک دي او هر لوستونکی یې په لوستلو غمجن کېږي. دلته یې د حبسیه شعرونو څخه یو یو بیت رااخلو چې څومره له درد او سوز نه ډک دي:

نن اغاز د لسم کال دی باور وکړه
چې په بند کې یې زېربېږم بې ګناه

* * *

هجري تش صورت نصیب په دکن بند کړو
په خدمت یې د یار زړه دایم حضور وي

* * *

د ماهي په نس کې پروت لکه یونس یم
مګر خلاص مې په کرم حق تعالی کا

* * *

هجري ته خو تل هوس د ولایت کړي
ولې ستا ورتله محال مګر نصیب وي

* * *

د ځیګر وینې مې وڅښلې غمونو
مرګه جګې جګې راشه اوس رضا یم

* * *

قاصدان له روه نه راځي مدت وشو
سلام باد رارسوي منت يې تم دی

د اشرف خان هجري د اشعارو درنه برخه حبسيات دي چې د ګواليار او بيجاپور په زندانونو کې يې ويلې دي:

دغه شعر يې د کلام د نمونې په توګه راوړو:

څو د يار د مستو سترګو نه جدا يم
لاهو کړی د حيرت خوني دريا يم
د ځيګر وينې مې وخورې غمونو
مرګه جګې جګې راشه اوس رضا يم
که زما په خون مين يې نن دې وار دی
د يار غم مې سبا وژني درته وايم
د کفن حاجت يې نشته شهيدان دي
چې په تېغ د هجر مړه دي زه ګويا يم
زه په بند د اورنګ نه يم چې به خلاص شم
بندي کړی شيخ رحکار زيړي بابا يم
په دکن کې پارو نشته چې مې دم کا
زه خوړلی اژدها توري بلا يم
يا دکن د غم وطن ښادي يې نشته
يا په ما غمونو شپه کړه مبتلا يم
هر نفس په ما عشور کا يزيدانو
ګويا زه حسين د وخت په کربلا يم
هسې رنګ جدايي مه شه له مراده
لکه زه فلک بېل کړی په جفا يم

د اورنـــګ جـور دا شــان چـې پـه صــورت دی
پـــه فـــریـــاد د فـرقــتـــونـو لـــه غـــوغـــا یم
جـــودانـــه صـبـر مــې کـلـه دی پـه زړه کې
زه روهـــــي د یـــار پــه مـــخ پـسـې تـــالا یم

د متن لنډیز:

د وطن یاد، د زندان کړاوونه، له کورنۍ لرې والی او فریادونه د اشرف خان هجري د شاعرۍ عامه موضوع ده. د عشقي مضامینو تر څنګه اخلاقي مضامین هم لري. په پورتني شعر کې هم د وطن یاد او له خپلوانو د جلا والي فریادونه کوي. اشرف خان هجري په دې شعر کې هغې مهمې پېښې ته اشاره کوي چې د شیخ رحمکار کاکا صاحب زوی یې له لاسه وژل شوی دی. له بهرام خان سره د قبیلې د سردارۍ په جګړو کې خپل اخښی شیخ ضیاء الدین د شیخ رحمکار زوی له دې کبله بندي کوي چې هغه د بهرام خان په خوا وي. اشرف خان هجري چې کله شیخ ضیاء الدین بندي کوي، بیا یې د زهرو په واسطه وژني.

کاکا صاحب د خپل زوی په وژل کېدو خپه کېږي، نو په دې توګه اشرف خان هجري وایي چې زه اورنګزیب نه یم بندي کړی. زه شیخ رحمکار بندي کړی یم، ځکه چې هغه ماته ښېرې کړې دي، ځکه له زندانه نه خلاصیږم.

اشرف په ځینو شعرونو کې په دغه پېښه خپله پښېماني څرګندوي او وایي:

هــجـري مــه شــه نــا امــیـد کـه ګـنـاهـګـار یې
الــبــتــه بـــه انـــعـــام وکـــا مـــهـــربـــان دی
لـــه عـــطـــا دي ډېـــر امـــیـــد لـــرم غــفــوره
زه هــجــري ځـکـه دایـــم پـــه اســتـغـفـار یم



## فعالیتونه

۱_ زده کوونکي دې د لوست له لوستلو څخه وروسته دغو پوښتنو ته ځوابونه ووايي:

- هجري څه وخت بندي شو؟
- هجري په کومو زندانونو کې بندي و؟
- هجري چېرته او په کوم حالت کې وفات شو؟
- په پښتو کې د حبسيه شعرونو ویونکي څوک دي؟

۲_ زده کوونکي دې له ښوونکي وروسته شعر په لوړ اواز ولولي او مفهوم دې په خپلو خبرو کې څرګند کړي.

۳_ زده کوونکي دې په یوه یا دوه پاراګرافه کې د هجري د زنداني کېدو عوامل په ګوته کړي او په ټولګي کې دې په وار سره واوروي.

٤_ زده کوونکي دې ووايي چې په لاندې بیت کې کوم ادبي صنعت شته:

هر نفس په ما عشور کا یزیدانو
ګویا زه حسین د وخت په کربلا یم

۵_ زده کوونکي دې لاندې بیتونه ولولي او په مفهوم دې خبرې وکړي:

زه پــه بـنـد د اورنــګ نــه یــم چــې بــه خــلاص شم
بــنــدي کــړی شــیــخ رحــمــکــار زیـــړي بــابــا یم
پــه دکـــن کـــې پــــاړو نــشــتــه چـــې مـــې دم کــا
زه خـــــوړلـــــی اژدهـــــــا تـــــــوري بـــــلا یـــم



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې لوست په کور کې په غور سره ولولي او د اشرف خان د ژوند او شاعرۍ په اړه دې دوه مخه لیکنه وکړي. بله ورځ دې په پښتو درسي ساعت کې خپلو ټولګیوالو ته ولولي.

# پښتو سفرنامې

سفرنامه لکه د نورو ادبي ډولونو یا ژانرونو په څېر یو ادبي ډول دی. په پښتو ادب کې د سفرنامې لیکل په شلمه پېړۍ کې پیل شول.

په سفرنامه کې د سفر ټول حالات لیکل کېږي او لیکوال د هغو سیمو یادونه کوي چې دی یې د سفر په لړ کې ویني. سفر نامې منظومې هم وي او منثورې هم.

پښتو ادب هم ډېرې په زړه پورې سفرنامې لري چې په دې لوست کې به یې دروپېژنو.

ـ سفرنامه څه ته وایي او له څه شي څخه بحث کوي؟

ـ تاسې د پښتو کومه سفرنامه پېژنئ؟

سفرنامه د داستاني ادبياتو يو ژانر (ډول) دی چې داستان ته ورته دی. سفرنامه هم لکه د داستان په څېر پېښه او يا پېښې لري. ژبه يې هم لکه د داستان د ژبې غوندې ادبي وي.

لکه د داستان غوندې يکې تلوسه هم وي چې سفر کوونکی به د سفر له ستونزو څخه څنگه بريالی وځي. په سفر نامه کې ليکوال د خپل سفر حالات او پېښې بيانوي. ليکوال چې له کومو ځايونو څخه تېرېږي، د هغو ځايونو او اوسېدونکو په هکله يې هم معلومات ورکوي. په سفر کې چې له چا سره مخ کېږي، د هغه يادونه هم کوي. کله کله د سفر په اوږدو کې د تاريخي ځايونو په هکله هم رڼا اچوي. د سيمې د خلکو د رواياتو او عنعناتو سره هم په ليکنه کې اړيکې نيسي. سفرنامه داستاني رنگ لري، خو د معلوماتو په اړه کله کله تاريخي، جغرافيايي او ټولنپوهنې په اړه هم معلومات ورکوي.

په پښتو ادبياتو کې د سفرنامو ليکل په معاصره دوره کې پيل شوي دي. په پښتو ادب کې لومړنۍ سفرنامه د ميا اکبر شاه ده چې د (آزادۍ تلاش) نومېږي. ميا اکبر شاه چې دغه وخت د پېښور د اسلاميه کالج زده کوونکی و او په ټوله پښتونخوا کې د انگرېزانو په وړاندې سياسي تحريکونه پيل شوي وو، نو دی هم د نورو زلميانو سره په دغه نهضت کې ملگری شو او د آزادۍ په تلاش د ده سفر ډېر وغځېد او له ډېرو ملکونو تېر شو. ميا اکبر شاه د خپل سفر دغه سختې او کړاوونه په خپله سفرنامه کې وليکل او د آزادۍ تلاش نوم يې پرې کېښود. ميا اکبر شاه خپل دغه سفر په ۱۹۲۰م. کال کې له پېښور څخه پيل کړ او له دوو کالو څخه يې زيات وخت ونيو.

ميا اکبر شاه په دغه سفر کې له کابل، بلخ، بخارا، سمرقند، تاشکند، مسکو، باکو، قفقاز او ايران نه تېر شو او په ۱۹۲۲م. کې بېرته راوگرځېد، خو د انگرېزانو حکومت ونيو او دوه کاله او اوولس ورځې يې په زندان کې تېرې کړلې. ميا اکبر شاه په زندان کې خپله سفرنامه وليکله، خو د چاپ اجازه نه د انگرېز حکومت ورکړه او نه د پاکستان له آزادۍ څخه راوروسته حکومتونو.

دغه سفر نامه څلوېښت کاله وروسته په ۱۹٦٤م. کال کې چاپ شوه. ميا اکبر شاه د خپلې سفرنامې په هکله داسې ليکي:

((په دغو ورځو کې افغانستان د خپل استقلال لپاره د انگرېز پر خلاف په جنگ کې مشغول و. زموږ کالج د انگرېزانو د ظالمانه رويې پر خلاف متواترې جلسې کولې. موږ

موقع غنیمت وګڼله، صلاح مو وکړه چې د وطن د آزادولو ښه موقع ده. موږ څلور ملګري د خپل وطن د آزادۍ په تلاش کې ووتو. زموږ خیال و چې موږ به د افغانستان د حمله ور پوځ په ملګرتیا کې د آزادۍ په جنګ کې برخه واخلو، خو موږ ته نه وه معلومه چې زموږ د آزادۍ تلاش به تر افغانستانه محدود نه وي او د کابل، بلخ، سمرقند، تاشکند، مسکو، باکو، قفقاز او ایران کې د مصیبتونو برداشت کولو څخه وروسته به زه خپل وطن ته په ۱۶ اګست ۱۹۲۲م. راستون شم.))

په پښتو سفرنامو کې دویمه سفرنامه د عبدالاکبر خان اکبر ده چې د (روسي ترکستان او افغانستان سفر) نومیږي. د عبدالاکبر خان سفر هم د میا اکبر شاه سفر ته ورته دی چې د آزادۍ د تحریک په لړ کې له پېښور څخه راوتلی او سفر یې تر تاشکند پورې اوږد شوی دی.

د عبدالاکبر خان دا سفر د افغانستان ځینې سیمې، تاشکند او د لارې په اوږدو کې مختلفې سیمې راچاپېروي. د ده سفر هم لکه د میا اکبر شاه غوندې له حیرانوونکو پېښو څخه ډک دی.

دا دواړه سفرونه په یوه وخت کې پیل شوي او یو مقصد لري. له همدې کبله ورته ټکي لري، ځکه چې د سفر تګلوری یو خواته او مقصد یې هم یو دی. خو دومره توپیر لري چې د عبدالاکبر خان سفر تر میا اکبر شاه لنډ دی. همدارنګه د میا اکبر شاه د سفرنامې ژبه د عبدالاکبر خان تر سفر نامې خوږه او روانه ده.

عبدالخالق خلیق د عبدالاکبر خان اکبر د سفر په هکله وایي:

(اکبر صاحب په کالج کې سبق ویلو چې په ملک کې سیاسي بیداري پیدا شوه. د انګرېزي حکومت خلاف زلمي د عمل میدان ته راووتل او چا فیصله وکړه چې د ملک نه هجرت وکړي او له بهر نه په یو منظم طاقت سره د غاصب حکومت نه ملک آزاد کړي. په هغه ډله کې اکبر صاحب هم له خپل خوږ وطن نه هجرت وکړ. افغانستان ته لاړ او له هغه ځای نه روسي ترکستان ته لاړو)

عبدالاکبر خان هم چې کله له سفر نه راستون شو، د انګرېزي حکومت له خوا ونیول شو، خو د خپلوانو په مرسته زنداني نه شو.

عبدالاکبر خان اکبر هم څلوېښت کاله وروسته دغه سفر نامه له خپلو یادښتونو څخه

ولیکله او چاپ شوه.

په پښتو سفرنامو کې بله سفر نامه د پوهاند صدیق الله رښتین ده چې د (هند سفر) نومېږي. د رښتین دا سفر د ۱۳۲۹ هـ. ش. کال د قوس په شلمه پیلېږي او د ۱۳۳۰هـ.ش. کال د حمل په لومړۍ نېټه پای ته رسېږي. دا سفر درې میاشتې او درې ورځې وخت نیسي. سفر د موټر، ریل، الوتکې او کښتۍ په واسطه ترسره کېږي او د هند، ایران او عراق د مختلفو سیمو او ځایونو یادونه کوي.

پوهاند صدیق الله رښتین دغه سفر نامه په خواږه، روان نثر لیکلې او د سفر د لیدنې، کتنې او ټولو کړاوونو انځور یې په ډېره ښه توګه کړی دی.

د پوهاند رښتین سفرنامه په پښتو سفرنامو کې لومړنۍ چاپ شوې سفرنامه ده، خو لومړنۍ دوې سفرنامې تر دې پخوا لیکل شوي دي.

په پښتو سفرنامو کې بل د پام وړ لیکوال امیر حمزه شینواری دی.

شینواري د خپلو سفرونو په لړ کې درې سفرنامې لیکلي چې یوه یې (د کابل منظومه سفرنامه) نومېږي او په ۱۹۴۸م. کال کې چې کابل ته راغلی و، دغه سفرنامه یې لیکلې وه. د حمزه شینواري دغه سفرنامه منظومه ده او د شعر بڼه یې ترکیب بند دی. له چاپ څخه وروسته سانسور شوه. کابل ته په دویم سفر کې یې بله سفر نامه (د نوي پښتون) په نامه ولیکله. په دغه سفر نامه کې حمزه شینواري د کابل د لیکوالو لکه محمد ګل خان مومند، غلام حسن خان ساپي، عبدالرؤف بېنوا، صدیق الله رښتین، قیام الدین خادم، ملك الشعرا بیتاب، نیك محمد پکتیاني او دوست شینواري سره د لیدلو کتنو یادونه کوي. همدارنګه د افغانستان په بدلون او پرمختګ هم بحثونه لري.

د حمزه شینواري بله سفرنامه د (حجاز په لور) نومېږي او د ده د حج د سفر حالات پکې راغلي دي. حمزه شینواری په ۱۹۶۹م. کال کې حج ته لاړ او د خپل دغه سفر ټولې خاطرې او د ایران او عربستان د ښارونو، زیارتونو او د حج مراسم یې په دغه سفرنامه کې انځور کړي دي. دا سفرنامه د اسلام د تاریخ په اړه هم یو لړ معلومات لري. د چاپ کال یې ۱۹۷۰م. دی.

له دغو سفرنامو راوروسته په پښتو کې ډېرې سفرنامې ولیکل شوې، لکه نالیدلی سوات د محمد نواز طایر، سفر په خیر د طاهر اثر اپریدي او نورې...

نن سبا په پښتو ادب کې د سفرنامو لیکوال زیات شوي دي او ډېرې سفرنامې لیکل شوي او هم چاپ شوي دي.

د متن لنډيز:

په پښتو ادب کې سفرنامه په شلمه پېړۍ کې رامنځته شوه. لومړنۍ سفرنامه د میا اکبر شاه وه چې د (آزادۍ تلاش) نومېده. لومړنۍ سفرنامه په پښتونخوا کې د سیاسي تحریکونو د پیل پر بنسټ ولیکل شوه. په دغه سفرنامه کې څو تنه زلمیان د آزادۍ په تلاش له خپل کور کلي څخه وځي او ډېر ملکونه په دې نیت ګوري چې مرسته ترلاسه کړي او د انګریزانو پر خلاف وجنګېږي. دویمه سفرنامه د عبدالاکبر خان اکبر ده چې د روسي ترکستان او افغانستان سفر نومېږي او لومړنۍ سفرنامې ته ورته مقصد لري. سفرنامه یو داستاني ژانر دی چې لیکوال پکې د خپل سفر حالات لیکي. په سفر پورې اړوند ټول مسایل په سفرنامه کې راځي. تاریخي، جغرافیایي او د ټولنپوهنې په اړه هم معلومات لري. سفرنامه لکه د داستان غوندې پېښې هم لري. ژبه یې هم داستاني وي خو داستان نه وي. په پښتو ادب کې ډېرې سفرنامې لیکل شوي دي، خو لومړني لیکوال یې میا اکبر شاه، عبدالاکبر خان اکبر، امیر حمزه شینواری او پوهاند صدیق الله رښتین دي. د سفر نامو اوږدوالی او لنډوالی د سفرونو په لنډوالي او اوږدوالي پورې اړه لري.

سفرنامه د یوې ورځې پر سفر هم لیکل کېږي او د څو ورځو او میاشتو پر سفر هم خو دا په لیکوال پورې اړه لري چې سفرنامه لیکي او که ریوټ.



## فعالیتونه

۱ـ زده کوونکي دې لاندې پوښتنې ځواب کړي:

- په سفرنامه کې کوم شيان راځي؟
- د پښتو ژبې لومړنۍ سفرنامه کومه ده؟
- د پښتو سفرنامو د څو تنو ليکوالو نومونه واخلئ؟
- کومې سفرنامې پېژنئ په اړه يې معلومات ورکړئ؟

۲ـ لومړنۍ سفرنامې کومې او په څه ډول حالاتو کې رامنځته شوې؟

په اړه يې په خپلو کتابچو کې معلومات وليکئ او بيا يې په وار سره په ټولګي کې ولولئ.

۳ـ که تاسې کوم سفر کړی وي، د خپل سفر حال له جزئياتو سره په ټولګي کې نورو ته ووايئ.

٤ـ لاندې لغتونه معنا او په جملو کې وکاروئ:

ټولنپوهنه، تحريک، عنعنات، غاصب

٥ـ څو تنه زده کوونکي دې خپل نظر څرګند کړي چې د سفرنامو لوستل څه ګټې لري؟

٦ـ څو تنه زده کوونکي دې په وار سره د هغو سيمو يادونه وکړي چې د آزادۍ تلاش په سفرنامه کې ليکوال ليدلي دي.

۷ـ زده کوونکي دې په وار سره د متن ځينې ټوټې ولولي او بيا دې د ويل شوې ټوټې مقصد او مفهوم په خپلو خبرو کې ټولګيوالو ته ووايي.



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د خپلو، خپلو سفرونو په اړه ليکنې وکړي چې کوم ځای ته تللي دي؟ څه يې ليدلي دي؟ د ځای، خلکو او لارې په اړه دې معلومات وليکي او بله ورځ دې په درسي ساعت کې ولولي.

# معنوي صنعتونه



په تېر لوست کې تاسې د بدیع د علم په اړه ولوستل چې د بدیع د علم بنسټ ایښودونکی عبدالله بن معتز دی او د بدیع په نامه یې د لومړي ځل لپاره کتاب هم لیکلی دی. دا مو هم ولوستل چې بدیع دوه ډوله صنایع لري: لفظي او معنوي. د لفظي صنایعو ځینې ډولونه مو په تېر لوست کې ولوستل. په دې لوست کې به معنوي صنایع ولولئ. معنوي صنایع هغه دي چې له معنا سره سروکار لري.

زموږ په کلاسیکه شاعرۍ کې د لفظي صنایعو تر څنګه د معنوي صنایعو ټول ډولونه شته او څرنګه چې هغه وخت د صنایعو کارولو دود و، نو هر شاعر هڅه کوله چې په خپل شعر کې لفظي او معنوي صنایع راوړي او په دې توګه د خپل شعر ښکلا زیاته کړي. په معنوي صنایعو کې ډېر ډولونه راځي، لکه: سوال او ځواب، ارسال المثل، طباق، مراعات النظیر، حسن تعلیل، لف و نشر، مبالغه، تجاهل العارف، کیسی، حسن مطلع، حسن مقطع او نور... په دې لوست کې یې ځینې نمونې لولو.

ـ تاسې کوم معنوي صنعت پېژنئ؟

ـ معنوي صنعتونه څه ته وایي؟

۱ـ سوال او ځواب: هغه صنعت ته ویل کېږي چې شاعر په خپل شعر کې پوښتنې او جوابونه سره یوځای کړي. په یوه مسره کې پوښتنه وکړي او په بله کې ځواب ورکړي، لکه پیر محمد کاکړ چې وایي:

وې مې زلفې دې پرمخ ولې تاوېږي — وې نوروز دی شپه او ورځ سره سمېږي
وې مې وروځې دې لیندۍ بانه دې غشي — وې ناوک دی د عاشق په زړه ځرخېږي
وې مې سترګې دې ترکومه خونخواري کا — وې دا باز د ښکار په وینو نه مړېږي
وې مې ماته ستا د غاښو تعریف وکړه — وې ږلۍ ده په لاله کې چې ویلېږي
وې مې ووایه علاج د ژړا څه کړم — وې باران د رحمت ښه دی چې ورېږي

وې مې خوار شو پیر محمد په عاشقۍ کې
وې پر ما چې مینه کړي هغه خوارېږي

۲ـ ارسال المثل: که شاعر په خپل کلام کې کوم مشهور متل راوړي، هغه ته ارسال المثل وایي، لکه:

چې اوربشې کړې کله غنم کېږي
دي رښتیا چې څه کړې هغه به اخلې

* *

وصل و هجر د یار دواړه ورور خور دي
په دنیا کې بې زحمته راحت نه وي

۳ـ طباق: دې صنعت ته تضاد یا تقابل هم وایي. که شاعر په خپل کلام کې داسې کلمې راوړي چې یو د بل ضد وي، لکه: تور او سپین، شپه او ورځ، هجران او وصال، نو دې صنعت ته طباق وایي، لکه:

مرګ له تندې په مذهب زما بهتر دی
نه ژوندون د دون همتو په اوبو

* *

هر سهار سترګې د ګل په اوښکو ډکې
په دا باغ کې بې ژړلو خندا نشته

٤ـ مراعات النظير: دې صنعت ته تناسب او تلفیق هم وایي او هغه دادی چې شاعر په خپل شعر کې داسې کلمې سره یوځای کړي چې یو له بله سره تناسب او نژدېوالی ولري، مثالونه یې دادي:

ستا چشمان به څه نګاه کا په خاکسارو
چې له کبره دې بانه ګوري آسمان ته

* *

که هر څو یې په تندي ږدي ارې زلفې
شانه نه پرېږدي د مستې خورې زلفې

٥ـ حسن تعلیل: هغه صنعت دی چې شاعر د کوم وصف لپاره یو مناسب علت راوړي، لکه:

په غرور د حسن لمر وخوت آسمان ته
زر راپرېوت چې یې ستا ښه بشر ولید

* *

کعبې تور کمیس اغوستی دی له غمه
مظلومان قرباني کېږي بې حسابه

لمر سهار راخېژي او ماښام پرېوزي خو شاعر د لمر پرېوتل له دې څخه ګڼي چې زما د محبوب په لیدو راپرېوت. په دا بل بیت کې شاعر دا دلیل راوړي چې کعبې د مظلومانو د وژلو له غمه تور کمیس اغوستی دی.

٦ـ لف و نشر: هغه صنعت ته وایي چې شاعر په خپل شعر کې لومړی څو شیان ذکر کړي او وروسته بیا د هغوی تعریف او بیان وکړي، لکه:

په ځان او په جهان کې ما دوه څیزه دي وکښلي
په ځان کې دواړه سترګې په جهان کې واړه ښکلي

* *

یا به دد یا به لړم یا به منګور یې
که داړل کړې یا چیچل یا په چا نېش یې

د لومړي بیت په لومړۍ مسره کې ځان او جهان ذکر شوی دی. په دویمه مسره کې په ترتیب سره د هغوی بیان شوی دی. د دوهم بیت په لومړۍ مسره کې دد، لړم او منګور راغلی دی. بیا په ترتیب سره د هر یو تعریف شوی دی. په لومړي بیت کې مرتب او په دویم بیت کې غیر مرتب لف او نشر راغلی دی.

۷_ مبالغه: که شاعر په خپل شعر کې د یو شي وصف تر اندازې زیات بیان کړي او یا یې تصدیق او تکذیب ته شدت او قوت ورکړي، مبالغه ورته وایي. مبالغه په درې ډوله ده:

الف: تبلیغ: چې مدعا او مقصد د عقل او هم د عادت له مخې امکان ولري، لکه:

له خوشحال سره که کېني یو څو کاله
دا د غره ختک به واړه شاعران شي

ب: اغراق: چې مدعا د عقل له مخې امکان ولري، خو د عادت له مخې ناشونی وي، لکه:

زه رحمان په زړه نری کړم هغو نجونو
چې یې ملا ده د ویښته په دود نرۍ

ج: غلو: چې مدعا او مقصد هم د عقل له مخې او هم د عادت له مخې ناشونې وي، لکه:

بې له تا هسې ضعیف یم ګلرخساره
پر حباب باندې که پښه ږدم نه ماتېږي

* *

و آسمان ته به د شعر زینې کېږدي
که حمید د غم له سره زنګون وکېښ

۸_ تجاهل العارف: هغه صنعت ته وایي چې شاعر یو معلوم او ځرګند شی مجهول وګڼي او سره له دې چې په مطلب ښه پوه وي د کوم نزاکت له مخې خپل ځان ناپامه اچوي، لکه:

دا د کوم ګلرخ له غمه په ګلشن کې
دي ګلان په وینو سره لکه سالو

* *

دا بــورا دی چــې پــر پــاڼــه د گــل نــاســت دی
کــه پــرمــخ د گــل رخـــســـار ده تـــوره زخــه

۹_ کیسی (لغز) چې د یوه شي خواص، صفات او نورې نښې وښودل شي او ددغو خواصو او نښو له مخې له مخاطب څخه د هغه شي د ښودلو پوښتنه وشي، لکه:

له پاسه راغی سور بلوڅ اغوستی یې پنځه پنځوس
ســور دی صندوقک دی له ســرو غــمیو ډک دی

له لومړۍ کیسی څخه مقصد پیاز او له دویمې څخه انار دی.

۱۰_ تلمیح: دا هغه صنعت دی چې شاعر په خپل کلام کې یوې مشهورې کیسې یا پیښې ته اشاره وکړي، نو که لوستونکی په هغه کیسه او یا پېښې باندې پوه نه وي د شعر معنا ورته گرانېږي، لکه:

د دنـیـا پـه دښـمـنـۍ کـې عـیـسٰـی وخـوت و آسمان ته
پـه دوسـتـۍ کـې یـې لا ځـي تحت الـثـرا تـه قـارون هسې

* * *

د مـاهـي پــه نــس کــې پـــروت لــکــه یـونــس یم
مــگــر خـــلاص مـــې پــه کـــرم حـــق تــعــالــی کــا

په لومړي بیت کې د عیسٰیؑ او قارون او په دویم بیت کې د یونسؑ کیسې ته اشاره شوی ده.

۱۱_ تکرار حسن: هغه صنعت ته وایي چې شاعر په خپل کلام کې کومه کلمه د تدریج، تاکید، ډېروالي یا داسې نورو اغراضو له امله تکرار کړي، لکه:

ستا مـــلالو سترگو زړه له ما نه یووړ اهـــو چشمه گلـــرخساره راشه راشه
چې همېش دې د اغیار په لور سفر دی یو ځـــــل یار ته له اغیاره راشه راشه

***

بیا راتلـــه دې و جهان ته بل وار نشته بل وار نشته بل وار نـشته وار دی دا

### د متن لنډيز

د بديع علم د عباسيانو په زمانه کې رامنځته شو. بنسټ اېښودونکی يې عبدالله بن معتز و چې کتاب البديع په نامه يې کتاب تاليف کړ. وروسته نورو ليکوالو هم په دې برخه کې کتابونه وليکل. پښتنو ليکوالو هم په دې برخه کې بېلابېل کتابونه وليکل. په افغانستان کې عبدالرؤف بېنوا د ادبي فنون يو کتاب وليکو او بيا وروسته نورو ليکوالو دا لړی پراخه کړه. بديع هغه علم دی چې د هغه په واسطه د شعر د ښکلا وجه څرګندېږي.

بديع دوه ډوله صنعتونه لري، لفظي او معنوي. لفظي له لفظ سره سر و کار لري او معنوي له معنا سره. په دې لوست کې تاسې معنوي صنايع وپېژندل، ځينې نمونې يې لکه سوال و ځواب، ارسال المثل، طباق، مراعات النظير، حسن تعليل، لف و نشر، مبالغه، تجاهل العارف مو ولوستل. د بديع د صنايعو په پېژندنې سره تاسې کولای شئ چې د پښتو ژبې د کلاسيکو شاعرانو شعرونه په آسانۍ ولولئ او معنا يې کړئ.

## فعاليتونه

۱ـ زده کوونکي دې له ښوونکي وروسته د لوست يوه يوه برخه په وار سره ولولي او بيا دې لاندې پوښتنې ځواب کړي:

- د بديع په برخه کې د لومړي ځل لپاره چا کتاب تاليف کړ؟
- په پښتو ژبه کې د بديع په برخه کې چا کتاب وليکه؟
- معنوي صنايع څه ته وايي؟
- د څو لفظي صنايعو نومونه واخلئ؟

۲ـ زده کوونکي دې په متن کې راغلي شعرونه په وار سره ولولي او بيا دې معنا کړي.

۳ـ په لاندې بيتونو کې کوم ادبي صنعتونه شته؟

وې مې زه د رقيب ظلم په عذاب کړم
وې پاداش د خپل عمل درته رسېږي

* *

بــې زحــمــتــه راحـــت نــشــتــه زمـــا وروره
کــه راحـــت غـــواړې زحـمـت درلـــره بـويـه
* *

ښـــه مــتــل دی څـــه کـــرې هــغــه بـــه رېـبـې
د عــمــل جـــزا مـــونـــدی شـــي لاس پـــه لاس

٤ـ زده کوونکي دې لاندې بيتونه په غور سره ولولي او ادبي صنعتونه دې په نښه او په خپلو کتابچو کې وليکي چې کوم ډول صنعتونه دي بيا دې په ټولګي کې ولولي:

زه پــه ســرو ســتــرګــو ژړا کـــړم چــې تــه درومـــې
تـــه لـــه مـــا چـــې رخــصــتــېـږې پـــه خـــنـــدا ځې
* *

هـــر ســاعــت شــمــه راکــېــښ دار و ســنــګــسـار ته
مــحــبــت قـــايـــم مـــقـــام کــــړم د مــنــصــور
* *

تـــورې ســتــرګــې، تـــورې وروځـــې تـــورې زلـفـې
دا هــمــه تـــورې بـــلا دي زه يـــې خـــوار کــړم
* *

چـــې نـــظـــر يـــې د ګـــلـــرخ ســاقــي پـــه مـــخ شو
د نـــرګـــس لـــه لاســـه جـــام پـــرېـــوت نـــسکـور شو

٥ـ په لاندې بيتونو کې د لف و نشر، مبالغه، تجاهل العارف او طباق صنعتونه په نښه کړئ:

ســتــا لـــه زلــفــو لـــه رخـــســـاره لـــه ســـرو شــونـډو
پـــيـــدا شـــوي شـــام، شــفــق و صــبــح دم دي
* *

دا د ګـــلـــو پـــه مـــخ ويــنــم کـــه د ښـکـلـو
مــلــغــلــرې کـــه خـــولـــې کـــه شــبــنــمــونــه
* *

په خندا خندا چې تلمه یې دیدار ته
اوس یې درومم په ژړا ژړا مزار ته

*  *

ستا له غمه مې په سر کې هومره شور دی
چې به نه وي هرګز شور د لاهور هومره

۶ـ زده کوونکي دې لاندې شعرونه ولولي او ودې وايي چې کوم ادبي صنعتونه پکې راغلي دي:

هر کله راشه تازه بهاره تا دي راوړي ګلان بې شماره
نرۍ شمال دې دم د عیسی دی سحر چې راشي له جګ کهساره

*  *

نشته بوی ستا د کمیس په درست جهان کې
څه امکان لري په مصر او کنعان کې

*  *

لار د محبت ده تل روغ سلامت نه یم
زه چې په دا هسې لارې تلمه تلمه تلم
څه وايي و ماته حال دې څه و په هجران کې
نور خبردار نه یم په زړه سومه، سومه سوم
خلق راته وايي رنګ دې بیا زېړ شو عاشق شوې
هیڅ منکري نه کړم خلقه شومه شومه شوم
دود د عاشق دادی چې په عشق کې ملامت وړي
ځکه زه خوشحال ملامت وړمه، وړمه وړم



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې په خپله خوښه یو شعر له کوم دیوان څخه ولیکي او په هغه کې دې معنوي صنعتونه په نښه او په بل پښتو درسي ساعت کې دې ولولي.



# چاپېريال ساتنه

خدای جل جلاله انسان اشرف المخلوقات پیدا کړ او د انسان لپاره يې د ځمکې پرمخ ډول، ډول موجودات پيدا کړل چې د انسان ژوند ورسره تړلی دی. زموږ شاوخوا چې څه وينو لکه ځمکه، اوبه، حيوانات، نباتات، تيږې، غرونه، ځنګلونه، ژوي او نور هر څه د چاپېريال توکي دي چې ټول په مجموع کې د چاپېريال په نامه يادېږي.

موږ په چاپېريال کې ژوند کوو او د ژوند ضرورتونه هم له چاپېريال څخه پوره کوو. د چاپېريال ساتنه چې يوه ډېره جدي موضوع ده، زموږ په ژوند پورې تړلې ده. د چاپېريال ساتنه په ټولو انسانانو پورې اړه لري، بلکې د دوی دنده ده چې چاپېريال ته پاملرنه وکړي او چاپېريال له هر ډول ناوړه اغېزو څخه وساتي.

ـ چاپېريال څه ته وايي؟

ـ د چاپېريال ارزښت په څه کې دی؟

زموږ د شاوخوا ټولو موجوداتو ته چاپېریال ویل کېږي. چاپېریال په درې ډوله دی لکه ژوندی چاپېریال چې په هغه کې انسانان، حیوانات او نباتات راځي. دویم غیر ژوندی چاپېریال لکه هوا، تیږې او اوبه. دریم فرهنګي چاپېریال چې د انساني اړیکو او فرهنګي اړیکو څخه بحث کوي.

انسان خواړه، کالي او کور له چاپېریال څخه لاس ته راوړي. څښتن تعالی د طبیعت د نظام د اجزاوو په منځ کې یو طبیعي تعادل رامنځ ته کړی دی، که دغه تعادل له منځه لاړ شي، نو په چاپېریال ناوړه اغېزه کوي. ژوندي موجودات لکه نباتات او حیوانات د غذایي موادو په تولید سره د تعادل په ساتنه کې او د انساني نسل په پایښت کې مهم ځای لري. نباتات د طبیعي اقتصاد اصلي بنسټ جوړوي. حیوانات له نباتاتو څخه او انسانان له ژویو او نباتاتو څخه ګټه اخلي.

له نباتاتو پرته واښه خوړونکي حیوانات او هم انسانان ژوند نشي کولی. ځکه چې حیوانات پر نباتاتو او انسانان پر دواړو ژوند تېروي.

د چاپېریال ساتنې لپاره پر چاپېریال باندې پوهېدنه ډېره ضروري ده. د چاپېریال د تخریب یو عامل د چاپېریال له اهمیت څخه د خلکو بې خبري ده. د چاپېریال ساتنه د نېکمرغۍ دوام دی او تخریب یې د بشري تمدن پای ته رسېدنه ده. د چاپېریال د اجزاو ترمنځ اړیکې د زنځیر کړیو ته ورته دي چې د یوې کړۍ له منځه تګ پر ټولو کړیو اغېزه کوي. د مثال په ډول که الوتونکي له منځه لاړ شي حشرات او موږکان زیاتېږي. ډېر الوتونکي مرغان ملخان خوري. بازونه موږکان خوري او په دې توګه کرنیزه ځمکه ترې په امن کې پاتې کېږي او د حاصلاتو د زیاتېدو سبب کېږي.

همدارنګه که څړ ځایونه له منځه لاړ شي مالداري کمېږي او یا یې په محصولاتو کې کموالی راځي. د کرنیزو ځمکو او حیواني محصولاتو کمښت د انسانانو ژوند په خطر کې اچوي.

ځنګلونه چې یوه طبعي شتمني ده او د ټولو انسانانو طبعي میراث ګڼل کېږي، که له منځه لاړ شي او یا تخریب شي، نو په چاپېریال ناوړه اغېزه کوي. ځکه چې له ځنګلونو څخه د

اړتیا وړ لرګي لاس ته راځي. همدارنګه هوا تصفیه کوي. د سیلابونو مخه نیسي، طبیعي ښکلا رامنځته کوي. د ونو ریښې ځمکه ټینګه ساتي او د سختو بارانونو مخه نیسي.

له بل پلوه د وحشي حیواناتو ځای دی چې د نشتوالي له امله له مرګ سره مخامخ کېږي. ځنګلونه له دغو ګټو سره د هوا او تودوخې د درجې په تغییر کې هم زیاته اغېزه لري.

د چاپېریال مهم توکی چې پرته له هغه څخه ژوند امکان نه لري هوا ده. د انسانانو او ژوندیو موجوداتو لپاره د لوی خدای جل جلاله ستر نعمت پاکه او صافه هوا ده. د انسانانو په نه پاملرنې سره هوا ککړېږي او په ټولنه کې د ډول، ډول خطرناکو ناروغیو لکه ساه لنډې، د هډوکو درد، سرطان او نورو لامل کېږي. څومره چې صنعت پرمختګ کوي په هماغه اندازه هوا ککړېږي. د خاورو ذرې، لوګي، بویونه او ډول ډول کیمیاوي مواد، زهري ګازونه هوا ککړوي، چې بیا دغه ککړه هوا د انسانانو، حیواناتو او نباتاتو ژوند له خطر سره مخامخ کوي. د ځنګلونو سوځېدل، قوي بادونه، کارخانې، موټرې، د ډبرو سکرو سوځېدل، د سګرټ څکول هوا ککړوي. د هوا ککړتیا د ځمکې د تودوخې درجه هم زیاتوي.

د چاپېریال بل مهم توکی چې پرته له هغه هم ژوند نشي کېدای اوبه دي. په اوبو کې د عضوي او غیر عضوي موادو زیاتوالی د اوبو فزیکي او کیمیاوي ځانګړتیاوو ته بدلون ورکوي چې بیا د خاصو ضرورتونو د استعمال لپاره وړ نه دي چې دې ته د اوبو ککړتیا وایي.

په اوبو کې د فضله موادو اچول اوبه ککړوي. د ښارونو ناولتیا د کرنیزو ځمکو فضله مواد او د صنعتي موادو زیاتوالی د اوبو د اکسیجن اندازه کموي. د چاپېریال بل مهم توکی خاوره ده چې د کاني موادو، عضوي موادو، هوا او اوبو څخه جوړه شوې ده. د کیمیاوي سرو، حشره وژونکو داروګانو زیات استعمال د خاورې په خواصو باندې اثر کوي چې په پای کې د نباتاتو په وده اثر پرېباسي. د کانونو، سرکونو او ودانیو د جوړولو لپاره د خاورې کیندل هم په خاوره ناوړه اغېزه کوي. چاودنې او د فضله موادو زیاتېدل هم پر چاپېریال باندې ناوړه اغېزه کوي. کثافات د جامد، مایع او نیمه جامد موادو پاتې شوني دي لکه ډول،

ډول پلاستیکونه، کاغذونه، د اوسپنې ټوټې، شیشه یي بوتلونه، د مېوو، سبزیجاتو، خوراکي توکو، هوټلونو، ساختماني او صنعتي فابریکو د موادو پاتې شوني په هوا، اوبو او خاورې باندې ناوړه اغېزې لري. که چېرې دغه کثافات په مناسب ځای کې وانه چول شي په پایله کې به چاپېریال ته خطرناکې ستونزې پیدا کړي.

د چاپېریال په وړاندې مهم خطرونه د نفوسو ډېروالی، د طبیعي سرچینو، څړ ځایونو، ځنګلونو، وحشي حیواناتو، د خاورې تخریب او نباتاتو له منځه تګ دی. د چاپېریال ساتنې لپاره باید د چاپېریال سازمانونه او قوانین جوړ شي. خلکو ته د چاپېریال د ارزښت په اړه پوهه او خبرتیا ورکړي.

د ښوونځیو، پوهنتونونو، ورځپاڼو، جریدو، راډیو، تلویزیون، پوسټرونو او اعلانونو په واسطه د خلکو په خبرتیا او پوهاوي کې کار واخیستل شي.

له طبیعي منابعو څخه معقوله ګټه اخیستل د چاپېریال د ساتنې معنا لري، نه دا چې په خپل حال پرېښودل شي. له طبیعي زیرمو څخه باید ناوړه ګټه وانه خیستل شي. ټول شیان یو له بل سره اړیکې لري که په یو جز کې لاسوهنه وشي نورې برخې متاثره کوي. په طبیعت کې هر شی یوه دنده لري، یو شي ته مضر او یا مفید ویل د انسانانو د ګټې له مخې ټاکل کېږي.

د دې لپاره چې خپل چاپېریال او خپل ژوند له خطره وژغورو نو اړ یو چې چاپېریال ته د ورپېښو خطرونو مخه ونیسو او هم د چاپېریال په پاک ساتلو کې زیار وباسو. د چاپېریال پاک ساتل د هر انسان دنده ده چې په ټولو پورې اړه لري. موږ هر یو باید له خپل کور او کوڅې، ښوونځي او لارو څخه د چاپېریال په پاک ساتلو کې خپلې دندې په پام کې ونیسو. خپل کور پاک وساتو، د کور کوڅه پاکه وساتو، کثافات په خپل مناسب ځای کې واچوو. په سړک او لارو باندې د مېوو پوټکي او د پلاستیک کڅوړې ونه غورځوو. که بل څوک داسې کوي باید پاملرنه یې راوګرځوو. له طبیعي زیرمو او نورو منابعو څخه باید په معقوله او په مسلکي ډول ګټه واخیستل شي او له بې ځایه لاسوهنې څخه زموږ چاپېریال وژغورل

شي. د استوګنې چاپېریال چې موږ او تاسې پکې ژوند کوو که پاك ونه ساتل شي، نو له ډول، ډول خطرناکو ناروغیو سره مخامخ کېږو.

د متن لنډیز:

زموږ چاپېره ټولو موجوداتو ته چاپېریال ویل کېږي. د چاپېریال مهم توکي هوا، اوبه او خاوره ده. د طبیعت د نظام د اجزاو په منځ کې خدای جل جلاله یو طبیعي تعادل رامنځته کړی دی. که دغه تعادل له منځه ولاړ شي، نو په چاپېریال ناوړه اغېزه کوي.

زموږ په شاوخوا کې د چاپېریال ټول توکي لکه اوبه، هوا، خاوره، نباتات، حیوانات، وحشي ژوي، ځنګلونه او نورې زیرمې او طبیعي منابع یو له بل سره داسې اړیکې لري چې که په یو توکي کې ناوړه لاس وهل کېږي په نورو توکو تاثیر کوي او چاپېریال متضرر کېږي. د مثال په توګه که هوا، اوبه یا خاوره متضرره شي نو ژوند ستونزمن کېږي او یا امکان نه لري.

موږ په چاپېریال کې ژوند کوو، که چاپېریال ته پاملرنه ونه کړو، نو ژوند ته مو خطرونه پېښېږي. د بېلګې په توګه که ځنګلونه ووهل شي نو سېلابونه زیاتېږي. ځمکه د بارانونو او سېلابونو له کبله خرابېږي، هوا تودېږي، ځکه چې ځنګلونه هوا تصفیه کوي او د سیلابونو مخه نیسي. موږ ته لازمه ده چې په چاپېریال کې په ناوړه توګه لاسوهنه ونه کړو، خو په معقوله او مسلکي ډول په چاپېریال کې لاسوهنه بې ګټې نه ده.

همدارنګه موږ ته لازمه ده چې د استوګنې چاپېریال پاك وساتو او له ډول، ډول مرضونو څخه ځانونه وساتو.



## فعالیتونه

۱ـ زده کوونکي دې متن په چوپه خوله ولولي او بیا دې لاندې پوښتنې ځواب کړي:

- د چاپېریال مهم توکي کوم دي؟
- د چاپېریال د توکو ترمنځ څه ډول اړیکې دي؟
- که ځنګلونه ووهل شي څه زیانونه رامنځته کېږي؟
- له طبیعي موادو څخه څه ډول ګټه اخیستل په کار ده؟

۲ـ څو زده کوونکي دې په وار سره د استوګنې د چاپېریال د پاکۍ په اړه خبرې وکړي.

۳ـ څو زده کوونکي دې چاپېریال ته د ورپېښو خطرونو په اړه خبرې وکړي.

٤ـ چاپېریال څنګه پاک وساتو؟ زده کوونکي دې په دې اړه یو پراګراف ولیکي او په ټولګي کې دې واوروي.

٥ـ د طبیعت د اجزاو ترمنځ یو تعادل موجود دی دا خبره دې زده کوونکي وڅېړي او بحث دې پرې وکړي.

٦ـ موږ د چاپېریال په وړاندې څه مسؤولیتونه لرو؟

۷ـ زده کوونکي دې په وار سره په لاندینیو موضوعاتو باندې خبرې وکړي خپل کور، کوڅه، ښوونځی او ښار څنګه پاک وساتو؟



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د خپل ښار د چاپېریال په اړه په کور کې یوه لیکنه وکړي چې زموږ د کلي یا ښار چاپېریال څه ډول دی؟ بله ورځ دې په ټولګي کې واوروي.



# د هوتکو ادبي دربار






د دولسمې هجري پېړۍ د دويمې لسيزې په پای کې په کندهار کې ګرګين د صفوي حکومت استازی حکمران و. داسې ظلمونه او ناروا وې يې کولې چې ددغې سيمې ټول خلک يې له ظلمه نارامه وو. تاسې په تېرو ټولګيو کې لوستي چې ميرويس نيکه خپل خلک پر ځان راټول کړل او د کوکران او مانجې له جرګو وروسته يې د ګرګين پر ضد ملي قيام وکړ او په (۱۱۱۹هـ ق) کال يې کندهار د ده له ظلمه خلاص کړ.

د ميرويس له مړينې وروسته د ده زوی شاه محمود پاچا شو. کله چې شاه محمود اصفهان ونيو، نو پخپله په اصفهان کې پاتې شو او په کندهار کې يې خپل ورور شاه حسين پاچا کړ. د هوتکو د دولت حدود له ملتان څخه پيل او د اوسني ايران د دجلې تر سينده پورې رسېده. ديره جات، اوسنی بلوچستان، غزنی، کندهار، ګومل، هرات هم د دوی په حکمرانۍ کې وو. شاه حسين چې پخپله يوې فرهنګپالې کورنۍ ته منسوب و او له ژبې او ادب سره يې زياته علاقه وه، نو فرهنګي کارونو ته يې خپله زياته پاملرنه واړوله. په دې لوست کې د شاه حسين په وخت کې تاسې ته د فرهنګي کارونو په اړه لنډې خبرې لرو.

ـ شاه حسين هوتک خپلې ژبې او ادب ته کوم کارونه کړي دي؟

ـ د ميرويس خان هوتک په کورنۍ کې کوم شاعران پېژنئ؟

د هوتکو د پاچاهۍ په دوران کې ډېر پښتانه شاعران او ادیبان پالل شوي او روزل شوي دي.

د هوتکو کورنۍ د علم او پښتو ژبې او ادب د پاللو لپاره ډېر خدمتونه کړي دي. حاجي میرویس خان هم د پښتو ژبې او ادب سره ډېره مینه درلوده. د رحمان بابا اشعار به یې لوستل او زیاته عقیده یې ورته لرله.

په سختو حالاتو کې به یې د رحمان بابا دیوان ته مخه کوله. سیدال خان ناصر، ملا پیر محمد، بابو جان بابي، داود خان او ملا نور محمد د ده د دربار عالمان وو.

شاه حسین هوتک پخپله یوې ملي او فرهنګي کورنۍ ته منسوب و. د میرویس نیکه مور نازو انا پخپله د پښتو ژبې ښه شاعره وه چې د شعرونو دیوان یې دوه زره بیته درلودل، خو موږ ته یې یوه څلوریزه پاتې ده.

سحـــرګه وه د نرګـس لـــېمه لانده ‌ ‌ ‌ څاڅکي څاڅکي یې له سترګو څڅېده

ما ویل څه دي کښلې ګله ولې ژاړې ‌ ‌ ‌ ده ویل ژوند مې دی یوه خوله خندېده

د میرویس نیکه په اولادونو کې د ده یو زوی شاه حسین او یوه لور زینبه د پښتو ژبې شاعران وو. د زینب یوه مرثیه چې د خپل ورور شاه محمود هوتک په مړینه یې ویلې موږ ته راپاتې ده:

ډېر سـو چې ورور تـېر لـه دنـیـا سـونـا
کــنــدهــار واره پــه ژړا ســونــا
دا روڼ جــهــان راتـــه تـــورتـــم دی نا
زړه د بـېـلـتـون پـه تـېـغ کــړم دی نا
هــوتــک غـمـجـن پـه دې مـاتـم دی نا
د پــاچــاهــۍ تـــاج مـــو بــرهــم دی نا
چې شــاه مـحـمـود تـېر لـه دنـیـا سونا
کــنــدهــار واره پــه ژړا ســونــا

دغه مرثیه تاسې په تېرو ټولګیو کې لوستلې ده، شاه حسین چې کله پاچا شو نو د

هوتکیانو دولت یې تر ګومله او کویټې پورې پراخه کړ. دی یو عادل او مدبر پاچا و. دربار یې له عالمانو، شاعرانو او فاضلانو ډک و. پخپله د پښتو ژبې شاعر و. محمد هوتک د پټې خزانې کتاب په ۱۱٤۱هـ.ق. کې د ده په سپارښتنه تالیف کړ او د پښتو د لرغونو شاعرانو شعرونه یې پکې خوندي کړل. پټې خزانې د شاه حسین یوه غزله خوندي کړې چې څو بیتونه یې په دې ډول دي:

بېلتانه دې د غمو په چپاو چور کړم | په تیارو کې د هجران یې له تا دور کړم
بېلتانه دې هسې اوښکې راخپرې کړې | ستا د فکر په ګرداب کې تل عبور کړم
د فراق پرې مې کېښود ومرې ته | په جهان کې یې رسوا لکه منصور کړم
په وصال دې هم ناښاد یمه دلبرې | د بېلتون فکر په زړه کې ناصبور کړم
د ښو غشی مې وخوړ په ځیګر کې | غمازانو په غمزو غمزو مهجور کړم

خلق یاد زما د عشق په لیونو کا
زه حسین محبت هسې مشهور کړم

د هوتکو له کورنۍ سربېره نور شاعران هم په دغه وخت کې وو چې شعرونه یې ویل. په دغه وخت کې د پښتو ادبیاتو د ودې لپاره ښه زمینه برابره وه. شاه حسین پاچا به په خپل دربار کې عالمان او شاعران پالل، دوی به یې په انعامونو او جوایزو لمانځل. د نارنج په ماڼۍ کې یې د ادبي دربار بنسټ کېښود. د کندهار په پاچاهي ارګ کې چې د نارنج ماڼۍ یې بلله په اونۍ کې به یو ځل په شاهي کتابتون کې دا ادبي دربار جوړېده. پخپله پاچا او نورو شاعرانو به پکې ګډون کاوه. محمد هوتک به د دې دربار د منشي په توګه هم حاضر و. پښتو حماسې هم په دغه وخت کې په منظم او بشپړ ډول رامنځته شوې. حماسه د ادبیاتو یو موضوعي ډول دی چې په دې ډول کې جنګي مسایل په حکایتي او داستاني ډول بیانېږي. په حماسه کې کله کله د رزم د خبرو ترڅنګه د بزم خبرې هم څرګندېږي. حماسه کېدای شي په نظم کې وي او یا هم په نثر کې وي. هغه اشعار چې جنګي او رزمي خبرې پکې راغلي وي او داستاني شکل ونه لري په حماسو کې نه حسابېږي.

حماسې په درې ډوله دي: تاریخي حماسې، عشقي حماسې او مذهبي حماسې.

په پښتو کې د حماسو لیکل د هوتکو د پاچاهۍ په دوران کې پیل شوي دي. په دغه دوران کې ډېره مهمه حماسه د ریدي خان مومند نظم کړې (محمود نامه) ده، په دې حماسه کې د میرویس نیکه او شاه محمود هوتک د جنګونو کیسې راغلې دي. دا کتاب ریدي خان مومند تر (۱۱۳۶هـ.ق.) وروسته په خواږه نظم کښلی دی او شاه حسین ورته زر طلاوې د انعام په توګه ورکړي دي.

د ریدي خان مومند د حماسې بشپړ متن په لاس کې نشته. یوازې د ګرګین د وژلو کیسه یې پټې خزانې تر موږه رارسولې ده. د دې وخت بله حماسه (جګړه د محمود افغان او نیول د اصفهان) ده. د دې حماسې لیکوال محمد امین سر پرېکړی نومېږي. محمد امین په (۱۱۳۵هـ.ق.) کال له شاه محمود هوتک سره د اصفهان د نیولو په جګړه کې شامل و. په دې حماسه کې د اصفهان د نیولو د جګړې ټوله کیسه راغلې ده.

د هوتکو په دوران پورې اړوند دریمه حماسه (قصه د برېښنا یا خدۍ) ده چې د محمد امین سرپرېکړي د زوی حافظ نور محمد ده.

دا حماسه په خواږه نثر کې لیکل شوې ده. د هوتکو په دربار پورې نور ترلې یو شمېر شاعران وو چې دلته یې په لنډیز یادونه کوو.

داود هوتک د قادر خان هوتک زوی د میرویس نیکه د لښکرو مشر و. په (۱۱۳۶هـ.ق.) کې وفات شوی دی. شعرونه یې ویل او د تجنیس په صنعت کې لوی لاس درلود. په پټه خزانه کې یې دوې رباعیانې راغلي دي چې یوه یې په دې ډول ده:

چې د چا په زړه کې اور د مینې بل سي   په وربل یې لمبې ګډې حال یې بل سي
اور د مینې کله مري د زړه له مینې   د وربل مینه که تل د زړه په تل سي

د دغه دربار بل شاعر ملا محمد یونس توخي د ملا محمد اکبر زوی دی. د شاه حسین پاچا په وخت کې د کندهار د جامع جومات امام و. د شاه حسین په دربار کې بل عالم ملا زعفران تره کی و چې په طب او حکمت کې یې د (ګلدسته زعفراني) په نامه یو کتاب لیکلی دی. دی د پښتو ډېر ښه شاعر و. کله چې د شال او ژوب سیمې فتحې شوې نو شاه

حسین پاچا ته یې دغه زیری په دې ډول وکړ:

د حسین بادشاه د بخت ننداره گــورئ چې یې فتح په لښکرو ړوب و شال کا

چې دا زیری یې راوړی دی حضور ته نو زعفـران انعام پر سر زعفراني شال کا

شاه حسین پاچا د دې شعر په اورېدلو سره ډېر ژر زعفراني شال ورکړ او په مجلس کې یې ټول حاضرین په یو یو زعفراني شال ونمانځل.

بابوجان بابي د کرم خان زوی چې د کلات حاکم و او د اصفهان په جنگونو کې د شاه محمود هوتک ملگری و د دغه ادبي دربار بل شاعر و چې د پښتو ملي نکل (شها او گلان) یې په پښتو نظم کړ چې دوه بیته یې په دې ډول دي:

عشـــــق یو هسې توریالی دی چې پر هر ځای یې بری دی

د عشق اور هسې سوزان دی چې ســـوځلی یې جهان دی

د دغه ادبي دربار بل غړی ستر سپه سالار شاعر سیدال خان ناصر و چې د هوتکو د پاچاهی په ټوله دوره کې د لښکرو مشر و. په ټولو جنگونو کې یې برخه درلوده او د نادر افشار په وړاندې د کندهار په دفاع کې په مېړانه وجنگېده.

سیدال خان ناصر د نادر افشار په امر ړوند کړای شو او پاتې عمر یې تر مړینې پورې د کابل په شکر دره کې تېر کړ. د شکر درې د سیاه سنگ په هدیره کې دفن دی. پټې خزانې د ده یوه ښکلې بدله خوندي کړې ده چې د سر بیتونه یې دادي:

یار ماله هسې گران سو راتېر تر ټول جهـــان سو

نور نه وینم په سترگــو جهان ټول راته جانان سو

ملا نور محمد غلجی د ملا یار محمد توخي زوی د هوتکو د کورنۍ د ښځو او نجونو استاد او لوی عالم و. یو کتاب یې د نافع المسلمین په نامه لیکلی دی. دغه کتاب په کابل کې چاپ شوی دی. یو مخمس یې چې پټې خزانې راوړی دی په دې ډول پیلېږي:

ته مؤمن ژوندی په دین یې زما یاره ته ژړا فریاد کـــوه په څوکـــو کاره

اســـــــتغفار توبه کـــوه د ځان د پاره ته هم ځان ساته پناه غواړه له ناره

بیداري کړه په سهار زما دلداره

بهادر خان د شاه حسین د لښکرو لوی سالار و. د شال او ړوب فتح د ده په لاس شوې.

شاه حسین به ده ته د ورور خطاب کاوه. بهادر خان هم د پښتو شاعر و. یوه بدله یې پټې خزانې ثبت کړې ده.

بېلــتون دې زور دی تـر لېمو مې سهار نم څاڅي
لکـه شبنم څاڅي
دا ســره یاقوت مې په لــمن کې ستا په غم څاڅي
په غــم الم څاڅي
گـــوره لیلی باران د اوښـــو ســـتا په چم څاڅي
ځنگه پر چم څاڅي

د هوتکو د ادبي دربار بله مشهوره څېره محمد هوتک د داود خان زوی دی. د هوتکو د دربار منشي او کاتب و. د شاه حسین په هڅونه یې د پښتنو شاعرانو تذکره (پټه خزانه) ولیکله. بل کتاب یې د خلاصة الطب په نامه ولیکو چې پاچا ورته سل طلاوې انعام ورکړې. یو بل کتاب یې د خلاصة الفصاحت په نامه هم لیکلی و. محمد هوتک د هوتکو د پاچاهۍ له سقوط څخه وروسته د کلات سیوري ته راغی. هلته یې کارېز وواهه او کلی یې جوړ کړ. په پټه خزانه کې یې د شعرونو نمونې راغلي دي. د یوې غزلې مطلع یې داده:

| | |
|---|---|
| ساقي پاځه د سرو میو ډک یو جام را | ستـا لـه غـمـه نـا ارام یـمـه ارام را |
| بې لـه میو د بهار نـنـدارې څـه کړم | پسرلی سـو د خـوښـۍ ښـه پیغام را |
| د بېلتون په تاریکۍ کې مې زړه شین سو | رڼـا لمر د جـان د میو پـه ظـلام را |
| ناکامیو د دنـیـا مـې کـام را تـریـخ کا | چې مې خوږ کا کام ترخه و ما ناکام را |
| نه نشاط سته نه مستي سته نه رندي سته | چې سم رند هغه اوبه علی الـدوام را |
| په اوبو مې سوړ زړگی لږ څه راتود کا | محمد ته د اور ډک یو هسې جام را |

پیر محمد میاجي چې د پیر افغان په لقب ستایل شوی و. دی هم د هوتکو د دورې عالم او شاعر و. دوه کتابونه یې لیکلي چې یو یې د (افضل الطرایق) په نامه د اخلاقو او عقایدو په بیان کې لیکلی دی. بل کتاب یې د (القرایض في رد الروافض) په نامه دی. د

پیر محمد د شعر نمونه هم په پټه خزانه کې راغلې ده. بل شاعر نصر الدین خان اندړ دی چې د (پلار ویلي) په نامه یې یو کتاب په پښتو نثر کې لیکلی دی. په پټه خزانه کې یې نمونه راغلې ده:

د خوار عاشق ژړا مدام وي دا څه کار دی نا
که وي په پټه خوله، همدغه یې گفتار دی نا
د خوار عاشق مدعا داده که ژړا کي نا
چې ورښکاره خپله زیبا مخ دلربا کي نا
په خپل وصال که یې خوشحاله محبوبا کي نا
بل څه نه غواړي همدغه امیدوار دی نا

د متن لنډیز:

د هوتکو د پاچاهۍ دوران (۱۱۱۹ _ ۱۱۵۰هـ.ق.) د پښتو ادبیاتو د منځنۍ دورې یو غوره پړاو دی. په دغه دوره کې ادبي دربار ایجاد شو. عالمان او شاعران راټول شول. عالمان او شاعران به په انعامونو نمانځل کېدل.

تحریري حماسي آثار په همدغه مهال کې رامنځته شول. تاریخي بشپړې حماسې او عشقي حماسې د دغه دوران لاسته راوړنې دي. د دې دوران نمونې د ولسي ادب ډېرې ښکلې نمونې دي. د دغه دوران د آثارو روحیه هېواد پالنه ده. د هنري ارزښتونو له پلوه د دغه دوران شعرونه په لوړه سطحه کې نه دي.

په دې دوران کې له نظم سربېره نثري کتابونه هم کښل شوي دي. لکه پټه خزانه، جگړه د محمود افغان او نیول د اصفهان او ځینې کیسې او نکلونه چې د پښتو د نثر په تاریخ کې خاص ځای لري.

د دغه وخت بله مهمه حماسه د ریدي خان مومند نظم کړې (محمود نامه) ده. قصه د برښنا یا خدۍ عشقي حماسه ده چې په نثر لیکل شوې ده. د هوتکو په شاهي کورنۍ کې ښځو هم شاعري کوله. د هوتکو د پاچاهۍ په وخت کې په لسگونو نور شاعران او عالمان هم وو چې له دغه دربار څخه لرې وو او ادبي هستونې یې کولې.



## فعالیتونه

۱ـ زده کوونکي دې متن په چوپه خوله ولولي او لاندې پوښتنې دې ځواب کړي:

- میرویس نیکه په څه ډول هېواد له پردیو اشغالگرو څخه خلاص کړ؟
- ادبي دربار د چا په وخت کې جوړ شو او څه کارونه یې سرته رسول؟
- د ادبي دربار کوم عالمان او شاعران پېژنئ نومونه یې واخلئ؟
- د هوتکو په کورنۍ کې کومې ښځې شاعرانې پېژنئ؟

۲ـ زده کوونکي دې د دغه دوران مهم ادبي کارونه په یو پراگراف کې ولیکي او بیا دې په ټولگي کې واوروي.

۳ـ څو زده کوونکي دې د هوتکیانو هغه خدمتونه په شفاهي ډول ووایي چې ژبې او ادب ته کړي دي.

٤ـ زده کوونکي دې په دوو ډلو ووېشل شي. یوه ډله دې د دغه وخت د شاعرانو نومونه واخلي او بله ډله دې د دغه وخت د کتابونو نومونه ووایي.

٥ـ د هوتکو د پاچاهۍ په وخت کې کومې حماسې د کومو شاعرانو له خوا رامنځته شوې نومونه یې واخلئ.



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې په کور کې متن په غور سره ولولي او بیا دې د هوتکو د پاچاهۍ د وخت مهم ادبي کارونه په یوه یا دوه مخونو کې ولیکي او په بله ورځ دې په پښتو درسي ساعت کې ولولي.



# د ماين خطرونه





افغانستان د نړۍ له هغو هېوادونو څخه دی چې زيات ماينونه او ناچاودي توکي پکې موجود دي، په افغانستان کې اوږد مهاله جګړه تېره شوې او د جګړې په دوران کې له مختلفو ماينونو څخه کار اخيستل شوی دی. څومره چې ماينونه زيات کارول شوي، هماغومره د ماين د قربانيانو شمېره هم زياته ده. اوس هم ډېر ماينونه تر خاورو لاندې دي او په هره مياشت کې له پنځوسو څخه زيات کسان د ماين قرباني کېږي.

ماينونه هغه چاودېدونکي توکي دي چې له لرګيو، اوسپنې او پلاستيک څخه جوړ او دننه يې ناچاودي توکي ځای پر ځای شوي وي. دا وسله هغه وخت چوي چې د انسان لاس يا پښه ورسره ولګي. دغه چاودېدنه د انسان د ټپي کېدو او يا مړينې سبب کېږي. مختلف ډولونه او شکلونه لري چې د انسانانو او لېږدېدونکو وسيلو د له منځه وړلو لپاره ترې کار اخيستل کېږي.

- که تاسې له ماين سره مخامخ شئ نو څه بايد وکړئ؟
- که په يو ځای کې څوک په ماين والوزي نو تاسې بايد څه وکړئ؟

ماینونه او ناچاودي توکي په هر ځای کې پیدا کېدای شي. ماینونه د ځانګړو سیمو د ساتنې لپاره لکه نظامي پوستو ته د تلو د مخنیوي لپاره او یا د ډار او وحشت د رامنځته کولو لپاره کارول کېږي.

د جګړو په اوږدو کې زموږ په هېواد کې ډول، ډول وسلې استعمال شوي دي چې یو له دغو څخه ماین او ناچاودي توکي دي. د ماینونو پېژندل سخت کار دی، ځکه چې زیات ماینونه په ځمکه کې ښخ شوي دي.

د ناچاودو توکو پېژندنه دومره ستونزمنه نه ده، ځکه چې ناچاودي توکي د ځمکې پر سر پراته وي، په دې توګه امکان لري چې یو وخت تاسې د ماین پر سیمه وربرابر شئ. که چېرې داسې پېښه شوه، نو تاسې باید وارخطا نه شئ او یو خوا بلې خواته ونه تښتئ. په دغه وخت کې باید دا لاندې لارښوونې عملي کړئ او تل یې په نظر کې ولرئ:

- په خپل ځای ودرېږئ.
- نورو خلکو ته ووایاست چې حرکت ونه کړي، ځکه چې دا سیمه خطرناکه ده.
- له هغه کس یا کسانو څخه چې په خوندي ساحه کې موقعیت لري، مرسته وغواړئ چې هغوی د ماین پاکۍ دفتر یا سیمه ییزو مقاماتو (پولیسو، سپین ږیرو، مشرانو...) ته خبر ورکړي.
- د مرستې تر رسېدو پورې باید صبر وکړئ، له خپل ځای څخه ونه خوځېږئ. همدارنګه که چېرې په کوم ځای کې د ماین پېښه رامنځته کېږي او تاسې د ماین قرباني وینئ نو هڅه وکړئ چې قرباني ته نژدې نه شئ، ځکه د دې امکان شته چې د یوه قرباني پر ځای دوه تنه قرباني شي.
- کله چې له داسې پېښې سره مخامخ کېږئ، نو لاندې لارښوونو ته پاملرنه وکړئ:
- هېڅکله د خطر سیمې ته د ننوتلو کوښښ مه کوئ، ځکه ستاسې ننوتل دې سیمې ته د نورو چاودنو سبب کېږي. تاسو او قرباني ته نور زیان رسېدلی شي. دا مو باید په یاد وي چې په کومه سیمه کې چې د یوه ماین پېښه رامنځته کېږي هلته د نورو ماینونو د شتون احتمال هم شته.

- قرباني يا د ماين ټپي ته ډاډ ورکړئ، له هغه سره خبرې وکړئ چې د ده روحي حالت بيخي خراب نه شي.
- د مسلکي مرستو لپاره ماين پاکانو، پوليسو، کلنيکونو او روغتونونو ته خبر ورکړئ چې د ماين له ټپي سره لازمه مرسته وکړي.
- تر هغه چې مسلکي مرسته نه وي ترلاسه شوې د خطر سيمې ته مه داخلېږئ، له قرباني سره خبرې وکړئ او هغه ته ووایاست چې له خپل ځای څخه ونه ښورېږي. هېڅکله کوم شی د هغه پر لور مه غورځوئ.
- که چېرې يې له بدن څخه وينه بهېږي مشوره ورکړئ چې د وينې بهېدل د لاس، پټکي او يا دستمال په واسطه بند کړي.

په دې توګه لازمه ده چې زده کوونکي دغه معلومات له خپلو خپلوانو او دوستانو سره هم شريک کړي چې هغوی هم د ماين له خطرونو څخه په امن کې پاتې شي.

همدارنګه لازمه ده چې د ماين لرونکو او ناچاودو توکو سيمې چې د ماين پاکانو له خوا په سره رنګ نښه شوي دي هلته داخل نه شي، ځکه په سره رنګ نښه شوې تيږې دا معنا لري چې دلته ماينونه شته. که کوم ځای په سپين رنګه تيږو نښه شوي وي نو دا معنا لري چې دغه ځای د ماين پاکانو په واسطه له ماينونو څخه پاک شوی دی. همدارنګه په آبي رنګ نښه شوې تيږې د هغه ځای څرګندونه کوي چې دلته ناچاودي توکي شته. دلته هم بايد د ننوتلو څخه مخنيوی وشي.

د سفر په وخت کې بايد په شاړو لارو تګ ونه شي ځکه هغه لارې چې تګ راتګ پرې نه کېږي هم د دې معنا لري چې دلته ماينونه شته.

که چېرې د سفر په وخت کې ياست او نه پوهېږئ چې په کومه لاره لاړ شئ، نو د محل له خلکو څخه پوښتنه وکړئ او کومه لاره چې هغوی درته ښايي په هغه لاره لاړ شئ. زړې کلاګانې او هم هغه سيمې چې جګړه پکې تېره شوي وي لکه پخوانۍ نظامي مورچې او يا هغه ځايونه چې په اغزي لرونکو سيمونو پوښل شوي، هلته مه داخلېږئ، ځکه چې دلته د ماينونو خطر شته.

ماشومان پوه کړئ چې د اوسپنې ټوټې او د وسلو خولونه ټول نه کړي، ځکه چې په دې کې ناچاودي توکي وي او د ژوند په بيه يې تماميږي.
ماينونه مختلف شکلونه لري، که تاسې له يوه نا آشنا شي سره مخامخ کيږئ، لاس مه وروړئ خپل مشران يا چارواکي او يا د ماين پاکانو ډلې ته خبر ورکړئ.
ماين پټ دښمن دی دوست او دښمن نه پېژني، کوښښ وکړئ چې د ماين له خطرونو څخه ځانونه وژغورئ.

د متن لنډيز:
زموږ هېواد په تېرو دېرش کلنو جګړو کې له ماينونو څخه ډک شوی دی. د اړوندو موسسو له خوا دغه ماينونه ايستل شوي او څه يې شنډ شوي دي، خو اوس هم تر ځمکې لاندې ډېر ماينونه ښخ دي چې مرګ او ژوبلې رامنځته کوي. که چېرې تاسې د ماين پر سيمه وربرابر شئ، نو پر خپل ځای ودرېږئ او د سيمې له خلکو څخه مرسته وغواړئ چې ماين پاکانو ته خبر ورکړي.
د هغې سيمې پوليس راخبر کړئ، د مرستې تر رارسېدو پورې بايد پر خپل ځای ولاړ واوسئ او مه ښورېږئ. کله چې د مرستې ټيم راورسېد، د هغو په لارښوونو باندې عمل وکړئ. داسې سيمې چې د ماين له کبله شکمنې وي، هلته مه داخلېږئ او يا د سيمې له اصلي اوسېدونکو څخه د دغه ځای په هکله پوښتنه وکړئ.
که چېرې د ماين يوه پېښه رامنځته کېږي او يو څوک د ماين په واسطه ټپي يا وژل کېږي، هلته مه ورځئ. په دغه وخت کې هم بايد د ماين پاکانو ټيم ته خبر ورکړئ. که چېرې تاسې وغواړئ چې د ماين ټپي ته ورنژدې شئ، نو په حقيقت کې له هغه سره مرسته نه کوئ، بلکې د خپل ځان او د هغه ژوند له نور خطر سره مخامخ کوئ، ځکه چې په کوم ځای کې يو ماين انفجار کوي، هلته کېدای شي نور ماينونه هم وي او ستاسو په ورتګ سره نورې چاودنې رامنځته شي. غوره به دا وي چې له ټپي سره خبرې

وکړئ، هغه ته ډاډ ورکړئ او ژر تر ژره د ماین پاکانو ډله راخبره کړئ.
زده کوونکو ته لازمه ده چې هېڅ یو نا آشنا شي ته لاس ورنه وړي، ځکه کېدای شي هغه ماین وي او ستاسې ژوند له خطر سره مخامخ کړي. همدارنګه زده کوونکو ته لازمه ده چې د ماین په اړه معلومات له خپلو نورو دوستانو سره هم شریک کړي چې د ماین له خطر څخه وژغورل شي.



## فعالیتونه

۱ـ زده کوونکي دې متن په وار سره په لوړ غږ ولولي او بیا دې لاندې پوښتنو ته ځوابونه ووایي:

- ماین څه ته وایي؟
- که چېرې ماینووینئ نو څه باید وکړئ؟
- که چېرې په کوم ځای کې ماین انفجار وکړي، نو موږ ته څه کول په کار دي؟
- که په کومه نا آشنا سیمه وربرابر شئ نو هلته باید څه وکړئ؟

۲ـ که چېرې تاسې د ماین او یا ناچاودو توکو له قرباني سره مخامخ کېږئ نو څه ډول غبرګون ښکاره کوئ؟

- آیا تاسو د مرستې لپاره د ماین سیمې ته ننوځئ؟
- آیا تاسې د ماین قرباني همداسې پرېږدئ او خپله تښتئ؟
- آیا تاسې ښه ګڼئ چې قرباني ته د مرستې لپاره څه شی ورګوزار کړئ او که همداسې یې پرېږدئ او که د ماین پاکانو ټیم ته به خبر ورکوئ؟

۳ـ زده کوونکي دې د مسلکي مرستو او غیر مسلکي مرستو په هکله نیم مخ لیکنه وکړي او بیا دې په ټولګي کې واوروي. ښوونکی دې د زده کوونکو نیمګړتیاوې سمې کړي.

٤ـ زده کوونکي دې د ماین د ډولونو او د ماین د ساحو په هکله په وار سره خبرې وکړي.

٥ـ که چېرې له کوم نا آشنا شي سره مخامخ شئ نو باید څه وکړئ؟

الف: را اوچت يې کړئ؟

ب: په پښه يې ووهئ؟

ج: په تيږه يې وولئ؟

د: ماین پاکانو ته خبر ورکړئ؟



## کورنی دنده

زده کوونکي دې په خپله سیمه کې د ماین د هغه قرباني په هکله یوه کیسه ولیکي چې دوی يې پېژني او په بله ورځ دې په درسي ساعت کې ولولي.





# اصطلاحات او محاوري






- محاوره څه ته وايي؟
- محاوره له متل سره څه توپیر لري؟

محاوره هم لکه د متل په څېر د شفاهي ادبیاتو یوه مهمه برخه ده چې د خبرو اترو په وخت کې یې ویونکي د خپل مقصد لپاره استعمالوي. اصطلاحات او متلونه که له یوه پلوه د یوې ژبې غنا څرګندوي، نو له بل پلوه ژبه ښکلې کوي.

تاسې په تېرو ټولګیو کې د متل په اړه معلومات ترلاسه کړي دي. په دې لوست کې به د محاورې یا اصطلاح په هکله معلومات ترلاسه کړئ.

اصطلاحات او محاورې هغه تعبیرونه دي چې هر ملت یې د خپل ژوند چاپېریال، عنعناتو، اخلاقو، دود دستور او روحیاتو مطابق پخپله ژبه کې خلق کوي او د خپلو مقاصدو د اظهار لپاره یې استعاره کوي. د محاورې په ویلو سره د اورېدونکي فکر ډېر ژر اصل مقصد ته رسېږي، پرته له دې چې ویونکی خپل مقصد په عبارت ووایي.

اصطلاحات او محاورې د ژبې او ادب او د ورځنیو خبرو اترو یوه قوي برخه ده چې د ژبې معنوي لطافت او خوند زیاتوي. محاوره د کلماتو داسې یوه مجموعه ده چې په خبرو اترو کې د حقیقي معنا پر ځای په مجازي معنا کې استعمالېږي لکه د سترګو تور یعنې ډېر خوږ او ګران.

محاوره په لغت کې خبرو اترو ته وایي او په اصطلاح کې د ویونکو د ورځنیو خبرو اترو یا د اسلوب د بیان نوم دی.

محاوره په دوو کلمو یا له دوو په زیاتو کلمو کې وي. محاورې د یوه قام، مزاج، طبیعت، دود دستور، کړو وړو، ذهن او فکر عکاسي وي. که څوک د یوه قوم مطالعه غواړي نو ضرور ده چې د دغه قام د ادب د مطالعې تر څنګه محاورې او متلونه هم مطالعه کړي.

متل هم لکه د محاورې په شان د حقیقي معنا پر ځای د مجازي معنا په توګه د استعارې او کنایې په ډول استعمالېږي، لکه: ځنګل د زمرو څخه خالي نه دی.

متل یو بشپړ عبارت یا بشپړه جمله وي چې مطلب او مفهوم یې هم بشپړ او پوره وي. محاوره د متل برعکس بشپړ عبارت او بشپړه جمله نه وي، بلکې په خبرو کې د استعمال په وجه ترې مطلب اخیستل کېږي، لکه په لاندې بېلګو کې:

د متل بېلګه: لمر په ګوته نه پټېږي. دا یوه بشپړه جمله ده او مطلب یې هم واضح دی.

د محاورې بېلګې: لور په لوټه تېره کول، له عقل سره ډزې کول، د زړه وینې څښل، د مرچو په ختټه کېناستل، د بوسو لاندې اوبه تېرول. په دغو مثالونو کې وینو چې بشپړې جملې نه دي او مطلب یې هم په ښکاره توګه څرګند نه دی. که دغه محاورې په نورو عبارتونو کې استعمال شي، نو مطلب یې هم واضح کېږي، لکه: زلمی لور په لوټه تېره کوي یعنې وخت

ضایع کوي. نسیم له عقل سره ډزې کړي دي. یعنې له عقل څخه کار نه اخلي او هر کار په بې عقلۍ سره کوي. له عزیز سره بحث کول د زړه د وینو څښل دي. یعنې خبرې ته غوږ نه ږدي. خبره نه مني. اکبر نن د مرچو په ختّه ناست دی، یعنې ډېر غوسه دی.

تورګل د بوسو لاندې اوبه بیایي، یعنې اصلي خبره نه کوي چل او فریب کوي.

د متل او محاورې ترمنځ توپیر همدادی چې په متل کې د کلماتو د یوې مجموعې مفهوم واضح وي او نورو کلماتو ته ضرورت نه لري.

متل په خپله جمله او عبارت کې واضح وي. په محاوره کې مفهوم واضح نه وي او د مفهوم د واضح کولو لپاره نورو کلماتو ته اړتیا لري. لکه په دې متل کې (څه چې کرې هغه به رېبې) مفهوم واضح دی او نورو کلماتو ته اړتیا نه لیدل کېږي، خو په دې محاوره کې (اوبه ورکول) واضح معنا نه لري، خو که نور کلمات ورسره یوځای شي نو معنا ورکوي، لکه: احمد خپل ورور ته اوبه ورکړه. یعنې مرسته یې ورسره وکړه. یا لکه: (له خوږې ګوتې نیول) دا محاوره ځانته معنا نه لري، خو کله چې ورسره نور کلمات یوځای شي نو معنا ورکوي، لکه: ستار وحید له خوږې ګوتې نیولی. یعنې مجبور کړی یې دی.

یا تر لمن لاندې کول چې ځانته معنا نه لري، خو که ووایو زلیخا ترور خپل لمسیان تر لمن لاندې کړل. نو دا معنا چې د لمسیانو ساتنه او پالنه یې په غاړه واخیستله.

محاوره په ژبه کې یو ځانګړی مقام لري او د ژبې او ادب یوه مهمه پانګه ګڼل کېږي. محاورې د سپین ږیرو له خولې وتلې دي او د ولس په تهذیب، تمدن او ثقافت باندې رڼا اچوي. محاوره هم لکه د متل په څېر ډېر خواږه لري. محاوره هم د متل په څېر لنډه وي. د متل غوندې د محاورو ویونکي هم معلوم نه دي او سینه په سینه له یوه نسل څخه بل ته لېږدېدلي دي.

متل او محاوره په پښتو شاعرۍ کې د استعمال ځای لري او کلام ښکلی کوي. په شعر کې فصاحت او بلاغت پیدا کوي او ورځني ژوند ته یې نژدې کوي. په لاندې بیتونو کې د محاورو بېلګې وینئ.

هسې شان مې تر دوه سترګو باران اوري
چې مې سپین شول په ژړا د کسو توري
(معز الله مومند)

وینې سپینې شوې د خلقو لکه اوښکې
خپل اجزا دي له جګره ګرېزان هم
(کاظم خان شیدا)

د اصطلاحاتو ځینې بېلګې:

ـ په خوله کې لویدل.

ـ په غوږ وهل.

ـ اوبه خړول.

ـ په سر ګرځېدل.

ـ سترګې درنول.

ـ سترګې سپینول.

ـ غاړه ایښودل.

ـ لاس تنګېدل.

د متن لنډیز:

محاوره په خبرو اترو کې د حقیقي معنا پر ځای په مجازي معنا استعمالېږي. محاوره له دوه او یا له دوو څخه له زیاتو کلمو څخه جوړه وي. محاوره بشپړ عبارت او بشپړه جمله نه وي، بلکې په خبرو کې د استعمال په وجه ترې مطلب اخیستل کېږي.

متل په خپله جمله او عبارت کې واضح وي، خو په محاوره او اصطلاح کې مفهوم

واضح نه وي. محاوره د مفهوم د واضح کولو لپاره نورو کلماتو ته اړتیا پیدا کوي. متل بیا نورو کلماتو ته اړتیا نه لري.

محاوره هم لکه د متل په څېر د خپل مقصد لپاره په خبرو کې استعمالیږي. محاوره هم لکه د متل په څېر د یوه ولس د ټولنیز ژوند عکاسي کوي. د محاورې ویونکی هم معلوم نه وي او له یوه نسل څخه بل ته لېږدېدلي وي. محاوره هم د ژبې یوه پانګه ده چې ژبه خوندوره کوي. په پښتو شاعرۍ کې هم لکه د متل په څېر محاورې راغلي دي. شعر یې خوږ او روان کړی دی او ورځني ژوند ته یې نژدې کړی دی. محاوره هم لکه د متل په شان په ورځنیو خبرو کې ډېره کارول کېږي.

## فعالیتونه

۱ـ زده کوونکي دې د ښوونکي له لوستلو څخه وروسته د متن یو، یو پراګراف ولولي او مفهوم دې په خپلو خبرو کې ووایي.

۲ـ ښوونکی دې څو زده کوونکي په وار سره د تختې مخ ته راولي او په متن کې راغلي محاورې دې یوه، یوه په تختې ولیکي او بیا دې په وار سره معنا کړي.

۳ـ زده کوونکي دې له ځانه یوه، یوه محاوره ولیکي، د محاورې مقصد دې په ګوته کړي او ټولګیوالو ته دې په وار سره واوروي.

٤ــ زده کوونکي دې لاندې پوښتنې ځواب کړي:

- متل څه ته وايي؟
- محاوره څه ته وايي؟
- د متل او محاورې توپير څه دی؟
- د متل او محاورې استعمال په ژبه کې څه ګټې لري؟

٥ــ زده کوونکي دې د لاندې محاورې په اړه خپل نظر په وار سره څرګند کړي.
(په پچه ختل)

٦ــ زده کوونکي دې په وار سره يو يو متل له ځانه ووايي او د متل مقصد او د استعمال ځای دې څرګند کړي.

٧ــ زده کوونکي دې د لاندې اصطلاحاتو پر مفهوم او مقصد خبرې وکړي او د هرې اصطلاح د استعمال ځای دې څرګند کړي:

- لاس په سر کول
- وينه سپينېدل
- آسمان ته ختل



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې په کور کې د کورنۍ د غړو په مرسته پنځه، پنځه محاورې له معنا او مفهوم سره وليکي او په بله ورځ دې په پښتو درسي ساعت کې ولولي.



# د روږديوالي لاملونه

روږديوالي (اعتياد) يو پرله پسې مسموميت دی چې د نشه يي توکو له استعمال څخه په بدن کې راپيدا کېږي. روږديوالی د ځاني او روحي زيانونو سبب کېږي او ټولنيزې ستونزې رامنځته کوي. په نشه يي توکو اخته کېدل او عادت يا د نشه يي توکو سره ځاني او روحي تړاو چې پرېښودل يې ستونزمن او ناشونی دی، روږديوالی بلل کېږي.

په نشه يي توکو عادت کېدل هغه وخت رامنځته کېږي، کله چې څوک په پرله پسې توګه نشه يي توکي استعمال کړي. هغه کسان چې نشه يي توکي کاروي او ورځنی عادت يې ګرځېدلی وي، دغه کسان د روږدو کسانو (معتادينو) په نامه يادېږي. له بده مرغه زموږ په ګران هېواد کې هم يو شمېر معتادان شته چې ځوانان دي او عمرونه يې د ۱۸ او ۳۰ کلونو ترمنځ وي. دغه کسان په کورنۍ او ټولنه کې هېڅ عزت نه لري. له ټولنې څخه جلا کړی شوي دي او د ټولنې د اوږو بار دي. په دې لوست کې به تاسې ولولئ چې روږديوالی څنګه پيدا کېږي او لاملونه يې څه دي؟

- تاسې کوم نشه يي پېژنئ، ووايئ چې هغه ولې په نشه اخته شوی دی؟
- څنګه وکړو چې له نشو څخه ځان وژغورو؟

روږدیوالی هغه متناوب او پرله پسې مسمومیت دی چې د ځینو مخدره توکو کیمیاوي او یا مصنوعي ترکیباتو د تدریجي مصرفولو له وجې په مصرف کوونکي شخص کې پیدا کیږي. د ځاني او روحي دواړو د زیانونو سبب کیږي. دا روږدیوالی په پایله کې ځانګړې او ټولنیزې ستونزې رامنځته کوي.

په بله وینا د یوه شخص عادت کېدل او یا له نشه یي توکو سره د ده ځاني او روحي تړاو چې ترک کول یې ورته ستونزمن او یا بیخي ناشونی کار وي روږدیوالی (اعتیاد) بلل کیږي.

په نشه یي توکو عادت کېدل هغه وخت منځ ته راځي کله چې روږدی شخص په پرله پسې توګه مخدره مواد لکه: اپین، چرس، هیرویین او یا مورفین استعمال کړي او د وخت په تېرېدو سره یې ورته علاقه زیاته شي. په تدریجي توګه د مخدره توکو په استعمال کې زیاتوالی راولي.

کله چې د مخدره توکو مصرف کوونکی داسې یو حالت ته ورسېږي چې په جبري توګه د نشه یي توکو مصرف ته اړوي، نو هغه ته معتاد ویل کیږي.

که څه هم په نشه یي توکو اخته کسان هېڅکله دا نه مني چې هغه دې ګواکې معتاد وي، خو دا یو حقیقت دی چې هغه روږدی دی. یو مشهور متل دی چې ((هېڅ معتاد خپل د اعتیاد لومړۍ ورځ په یاد نه لري)).

دا یو څرګند حقیقت دی چې هېڅوک دا نه غواړي چې د اعتیاد په لومو کې دې راګیر شي او هېڅکله دا اراده هم نه لري چې په مخدره توکو دې اخته شي او خلک دې د یو نشه یي په توګه یاد کړي.

هغه کسان چې معتاد کیږي په لومړي سر کې د یو ازمایښت په توګه نشه یي توکي استعمالوي او یا د ناوړه دوستانو او ملګرو له خوا نه ورته بلنه ورکول کیږي چې په دغسې کوچنۍ تېروتنې سره د نشه یي توکو په لومو کې راګیر شي چې بیا ورڅخه د ځان ژغورل مشکل او یا ناشونی وي.

په حقیقت کې همدغه حالت ته روږدیوالی یا اعتیاد ویل کیږي. روږدیوالی هغه یوه لویه

ټولنیزه، روغتیایي او اقتصادي ستونزه ده چې بشري ټولنه یې له یوه جدي خطر او تهدید سره مخامخ کړې ده چې د ټولنې د وروسته والي، اخلاقي انحطاط او ټولنیز فساد سبب کېږي.

د نشه یي توکو استعمال او پر هغو باندې روږدېدل بېلابېل لاملونه لري، لکه ځانګړي لاملونه، ټولنیز، سیاسي، فرهنګي، اقتصادي، جګړې، مهاجرتونه او داسې نور... د دغو یاد شویو لاملونو په منځ کې دوه لاملونه د انسانانو په روږدېدنه کې خورا زیات اغېزمن دي، چې یوه ډله یې ځانګړي لاملونه دي او بله ډله یې ټولنیز.

ځانګړي لاملونه: ټول هغه اسباب او علتونه چې په خپله په شخص پورې اړه لري او د هغه د معتاد کېدو سبب کېږي، د ځانګړو لاملونو په نامه یادېږي، لکه:

ـ د ځلمیتوب دوره: د نوې ځوانۍ دوره هغه مرحله ده چې د روحي ناورین سره یوځای پیلېږي او د هر شخص په ژوندانه کې یوه ډېره مهمه دوره بلل کېږي. دغه د زلمیتوب دوره چې له ناورین سره پیلېږي یو عمده لامل دی چې ځوان په مخدره توکو باندې اخته شي. ځکه چې ځوانان په دغه دوره کې له سالمې روزنې څخه بې برخې وي. تل غواړي چې خپلواک واوسي. خپل احساسات بیان کړي، کله ناکله د خپل پلار او مور په وړاندې هم په مخالف دریځ کې دریږي، د هغو د نظریو او خبرو مخالفت کوي.

د دې لپاره چې خپل شتون ثابت کړي، ځینې وختونه د کورنۍ ارزښتونه هم تر پوښتنې لاندې نیسي. همدارنګه د کنجکاوۍ حس چې د دغې دورې یوه ځانګړتیا ده، د دې سبب کېږي چې نوي ځوانان د نشه یي توکو په هکله فکر او کنجکاوي وکړي او دغه کنجکاوي او فکر کول یې د نشه یي توکو تر استعماله ورسوي.

په ځان باور نه درلودل: په ځان باور نه درلودل او ځینې نور شخصي لاملونه له روږدیوالي سره اړیکې لري. په هره کچه چې د یوه شخص اراده کمزورې وي او په ژوند باندې د کنټرول لرلو احساس یې غښتلی نه وي، یا په ځان هېڅ باور ونه لري یا پر ځان یې د باور احساس کمزوری وي، نو په هماغه اندازه یې په مخدره توکو باندې د اخته کېدلو خطر زیات وي.

ـ روحي پرېشانی (ژور خپګان): په نشه باندې د اخته کېدلو یو لامل روحي او نفسیاتي

علتونه دي، لکه خپګان، ځاني کمزوري او روحي تشويشونه.

دا لامل په سلوکې (۷۰) دی، یا په بله وینا په سلوکې (۷۰) کسان د روحي پرېشانۍ له کبله په نشه يي توکو اخته کېږي.

ـ د سرپرست نه درلودل: ځينې ځوانان کله ناکله په داسې حالاتو او ځايونو کې ژوند کوي چې که خوښه يې وي او که نه په نشه يي توکو اخته کېږي. له بله پلوه د پالونکي نه درلودل او يا د بېلابېلو لاملونو له کبله کور پرېښودل، په هوټلونو او رستورانتونو کې شاګردي کول او داسې نور لاملونه سبب کېږي چې د نشه يي توکو په لومو کې ونښلي او ټول ژوند يې قرباني شي.

د مخدره توکو په هکله مثبت ليد:

د نشه يي توکو د اخته کېدو (اعتياد) په لاملونو کې يو ډېر مهم لامل دادی چې ځوان د نشه يي توکو په هکله مثبت ليد لري او خوشبينانه قضاوت کوي. ځينې روږدي کسان فکر کوي چې ګواکې د مخدره توکو استعمال د هغوی جسمي قوه پياوړې کوي او د ځاني ستړيا په لرې کولو کې اغېزمن دي، روحي سکون او ارامتيا رامنځته کوي. دغه ډول قضاوتونه د دې سبب کېږي چې ناپوهه او بې تجربې کسان نشه يي توکو ته وهڅوي او روږدي شي.

د نشه يي توکو موقت تاثيرات: ټول نشه يي توکي لکه هيروئين، الکول، کوکاين، چرس، اپين او داسې نور په لومړي سر کې يوه غولوونکې ارامتيا او خوشحالي رامنځته کوي چې د نشه يي توکو استعمالوونکی هڅوي چې بيا دغه توکي استعمال کړي او هماغه لومړنۍ خوند ترې واخلي، خو وروسته په سترو بدمرغيو اخته کېږي.

ټولنيز لاملونه: ټول هغه اسباب او علتونه چې په ټولنه او يا کورنۍ کې موجود وي او د روږدېدو سبب کېږي د ټولنيزو لاملونو په نامه يادېږي لکه:

- بې بندو باره کورنۍ.
- د ماشومانو په هکله د ميندو او پلرونو بې پروايي.
- د ناوړ ه او بدو دوستانو لرل.
- په ټولنه کې د قانون او مقرراتو نشتوالی او یا نه تطبيق کېدل.

- د مخدره توکو د خرڅلاو د بازارونو شتون.
- بې کاري او د یوه سالم کار نه درلودل.
- د نشه یي توکو د ضررونو د خبرتیا د پروګرامونو نشتوالی.
- ټولنیز محرومیتونه.
- اقتصادي بې وزلي او یا زیاته بډاینه.
- د اسلامي لارښوونو او احکامو څخه بې خبري.
- د مخدره موادو له ضررونو بې خبري په تېره بیا هغه ضررونه چې په اوږده وخت کې راڅرګندېږي.

د متن لنډيز:

په نشه يي توکو باندې اخته کېدل ډېر علتونه لري چې دوه يې خورا مهم دي، ټولنيز عوامل او ځانګړي عوامل. ځانګړي عوامل هغه دي چې پخپله په شخص پورې اړه لري لکه د زلميتوب دوره، په ځان باور نه لرل، روحي پرېشاني، د پالونکي نه لرل، نشه يي توکو ته په مثبت نظر کتل.

په ټولنيزو عواملو کې د کورنيو انظباط نه درلودل، د مور و پلار بې پروايي، له بدو دوستانو سره راشه درشه، په ټولنه او کورنۍ کې د قانون نشتوالی او يا نه تطبيق کېدل، د نشه يي توکو د خرڅلاو د بازارونو شتون، بې کاري، بې وزلي، د نشه يي توکو پر ضد د پروګرامونو نشتوالی، ټولنيز محروميتونه، د اسلامي لارښوونو څخه بې خبري، دا ټول هغه عوامل دي چې يو شخص نشه يي توکو ته مخه کوي.

په دې توګه موږ ټولو او په تېره ځوانانو ته لازمه ده چې له نشه يي توکو څخه ځانونه لرې وساتو او له نورو سره هم مرسته وکړو چې نشې ته مخه نه کړي، ځکه چې نشه په کورنۍ او ټولنه کې د انسان اعتبار ختموي او په ورو، ورو يې د ژوند له ښکلي نعمت څخه هم بې برخې کوي.



## فعالیتونه

۱ـ یو زده کوونکی دې وروسته له ښوونکي څخه متن په لوړ غږ ولولي، نور زده کوونکي دې غوږ ونیسي او بیا دې لاندې پوښتنې ځواب کړي:

- اعتیاد څه ته وايي؟
- ولې یو شخص په مخدره موادو اخته کېږي؟
- ټولنیز عوامل کوم دي؟
- ځانګړي عوامل کوم دي؟

۲ـ زده کوونکي دې د ښو دوستانو او بدو دوستانو په هکله څو کرښې په کتابچه کې ولیکي او بیا دې په وار سره په ټولګي کې واوروي.

۳ـ زده کوونکي دې په وار سره د نشې په ضررونو خبرې وکړي او د خپلې سیمې د یوه نشه يي د ژوند حال دې بیان کړي.

٤ـ زده کوونکي دې په څلورو ډلو ووېشل شي. هره ډله دې په خپلو منځو کې بحث وکړي او د روږدېدنې نور عوامل دې لست کړي، بیا دې د هرې ډلې استازي په ټولګي کې خپل لست واوروي.

٥ـ زده کوونکي دې په وار سره پر دې موضوع (په ځان باور نه درلودل) خبرې وکړي او زیانونه دې څرګند کړي.



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د زلمیتوب د مرحلې په اړه دوه، دوه مخونه ولیکي چې ځوانان څه مسؤولیت لري، ځوان باید څنګه وي او د ټولنې د خدمت لپاره څه ډول وروزل شي؟

# پښتو لهجې

موږ خبرې په ژبه کوو. ژبه د پوهولو او راپوهولو یوه وسیله ده چې په ټولنه کې اجتماعي مناسبات رامنځته کوي. لکه څنګه چې په نړۍ کې ژبې ډېرې دي، همدغسې ځینې ژبې د زیاتو لهجو لرونکې دي.

لهجه له ژبې څخه راوتلې او په یوه ټاکلې ټبر او یا ځانګړې جغرافیایي چاپېریال پورې اړه لري. لهجې د ځینو کلماتو په تلفظ او ویلو کې له اصلي ژبې سره توپیر لري.

پښتو ژبه هم یوه لرغونې تاریخي آریایي ژبه ده، چې ډېرې لهجې لري.

موږ په دې لوست کې د پښتو ژبې په ځینو لهجو بحث کړی دی چې یو له بل سره څه توپیرونه لري او په کومو ځایونو کې کومې لهجې ویل کېږي.

- لهجه څه ته وایي؟
- پښتو ژبې کومې لهجې لري؟

ژبه یوه ټولنیزه کسبي پدیده ده چې د هغې په واسطه ټولنیز مناسبات رامنځته کېږي. ژبه د غړونو یو جوړ شوی سیستم دی چې د یوې ډلې له خوا د پوهولو او راپوهولو لپاره کارول کېږي.

په بله وینا ژبه هغه آوازونه دي چې انسانان یې د خپلو افکارو او خیالاتو د څرگندولو په غرض تر یو خاص سیستم لاندې د صوتي غړو په واسطه له خولې څخه راباسي.

کوم بریدونه چې د یوې ژبې لهجې سره بېلوي، هغه وییز گړني، صوتي، گرامري او لکزیکي توپیرونه دي، ځکه ژبه د یو لړ وییزو او اوریزو سمبولونو سیستم دی او هر سمبول زموږ د یوه ذهني انځور ښکارندویي کوي او دا انځورونه په خپل وار د انساني چاپېریال او مهال څېزونه، پېښې او کړه وړه را اخلي، نو جوته ده چې دغه انساني چاپېریال، مهالي څېزونه، کړه وړه تل په بدلون کې دي او بیا په خپله د وگړو ترمنځ فزیکي کلتوري، ټولنیزې او وټه ییزې ځانگړتیاوې یوه جوته بېله نه شي درلودای.

نو همدغه اووښتنه د ژبني اوښتنې یا په بله وینا د ژبې د رنگارنگۍ لامل او سرچینه ده او په یوه ژبه کې دا رنگارنگي د بېلابېلو لهجو معنا لري.

سیمه ییز او قومي وېش، پوهه او ناپوهي، بډاینه، لږ عمر او ډېر عمر، نارینتوب او ښځینه توب او داسې نور لهجوي توپیرونه دي.

ژبه یو سیستم دی کوم ډله ییز توپیرونه چې په دغه سیستم کې لیدل کېږي، هغه لهجه ده. لهجوي اختلافات اجتماعي وي چې د صنف او طبقې په اساس راغلي وي یا ښایي محلي وي چې د جغرافیوي توپیرونو په اساس رامنځته کېږي. کوم گروپي توپیر چې په ویلو او غږیز سیستم کې لیدل کېږي، لهجه بلل کېږي. لهجه له اصلي ژبې او سیستم څخه په ځینو کلمو او تلفظونو کې بېله شوي وي. دا بېلتون د قبیلو، سیمو، ښارونو، کلیو، بانډو، پوهو او ناپوهو، لوستو او نالوستو ترمنځ د خبرو اترو په وخت کې څرگندېږي او د ژبې عمومي جوړښت ساتي.

پښتو ژبه هم د نورو ژبو په څېر په بېلابېلو سیمو کې د ویونکو د شتون له کبله ډېرې لهجې لري چې د ټولو لهجو څېړل اوږده موضوع ده. دلته په لنډه توگه د پښتو لهجو په یو

عام وېش باندې خبرې کوو.

د غربي هېوادونو ختيځ پېژندونکو د پښتو لهجې په دوو لويو ډلو وېشلي دي چې يوه ډله يې لويديځې لهجې او بله ډله يې ختيځې لهجې دي. دا وېش د دوو تورو (ښ،ږ) د توپير پر بنسټ شوی دی چې په لويديځو لهجو کې (ش، ژ) ته نژدې دی او په ختيځو لهجو کې (خ، گ) تلفظ کېږي.

د وروستنيو څېړنو په پايله کې دريمه ډله د مرکزي لهجې په نوم هم ورزياته شوه. پښتو لهجې په لومړي سر کې په دوو سترو ډلو اصلي او فرعي وېشل کېږي چې هره ډله يې ځانته ډولونه لري.

اصلي لهجې په درې ډوله دي چې په لنډيز سره ورته اشاره کېږي:

۱_ لويديځه لهجه: دا لهجه د کندهارۍ لهجې په نوم هم يادېږي. د هېواد په لويديځو او جنوبي سيمو کې ويل کېږي. په دغه لهجه کې دوه ځانگړي توري (ښ،ږ) د (ش،ژ) آواز ته نژدې تلفظ کېږي او بله مهمه ځانگړتيا يې داده چې په کومکي فعلونو کې د (ش) آواز په (س) بدلېږي لکه د (وشو، شوي دي، شته، نشته) کلمې په (وسو، سوي دي، سته، نسته) ويل کېږي.

۲_ مرکزي لهجه: دا لهجه د منځنۍ لهجې په نوم هم يادېږي او د افغانستان په مرکزي سيمو لکه غزني، وردگ، لوگر، پکتيا، پکتيکا او نورو کې ويل کېږي.

په دغه لهجه کې د پښتو ځانگړي توري (ښ،ږ) په خپل اصلي آواز تلفظ کېږي او د تلفظ په وخت کې د ژبې منځنۍ برخه له پورتني تالو سره نښلي.

۳_ ختيځه لهجه: دا لهجه د ننگرهارۍ لهجې په نوم هم يادېږي. د ننگرهار، مومندو، باجوړ، هشنغر او يوسفزو په سيمو کې ويل کېږي. په دې لهجه کې د (ښ،ږ) توري د (خ،گ) په څېر ويل کېږي.

فرعي لهجې: فرعي لهجې په پښتو کې زيات ډولونه لري چې ځينې مهمې يې په لاندې ډول دي:

۱_ وزيرۍ لهجه: وزيرۍ لهجه د (ښ،ږ) تلفظ د لويديځې لهجې په څېر کوي، خو په

ځینو کلماتو کې له مرکزي لهجې سره اړیکې او نژدېوالی لري. په وزیری لهجه کې هغه (الف) چې د کلمې په منځ او پای کې راغلی وي په (و) بدلېږي لکه (کال، پلار، کابل) په (کول، پلور، کوبل) اړوي او همدارنګه کله چې (و) د کلمې په منځ کې راشي هغه په (ی) بدلوي لکه (مور، لوند، توت) په (میر، لیند، تیت) تلفظ کوي.

۲ـ د ختټکو لهجه: د ختټکو لهجه د (ښ،ږ) په تلفظ کې له لویدیځې لهجې سره سمون لري، خو په لغاتو او اصطلاحاتو کې له ختیځې لهجې سره اړیکې لري.

۳ـ کاکړې لهجه: دا لهجه په ځینو کلمو کې لویدیځې لهجې او په ځینو کې له مرکزي لهجې سره نژدېوالی لري. مثلاً (ژ) د مرکزي لهجې په څېر (ز) تلفظ کوي او ژوند، ژبه، ژمی د (زبه، زوند، زمی) په بڼه اړوي او تلفظ کوي.

٤ـ د احمدزو لهجه: په دې لهجه کې (ژ) په (ز) او په ځینو کلمو کې (ش) په (س) بدلوي لکه (ژوند، مشر، میاشت) په (زوند، مسر، میاست) تلفظ کوي.

۵ـ د وردګو لهجه: دا لهجه د اصلي مرکزي لهجې په ډله کې راځي.

٦ـ د پکتیا لهجه: دا لهجه هم د مرکزي لهجې په کتار کې راځي، خو ځینې ځانګړې نښې هم لري، مثلاً ځدران او ځاځي د (راځه، ځي) پر ځای (راڅه، څي) وایي.

۷ـ د اپریدو لهجه: دا لهجه په ځینو کلماتو کې له مرکزي لهجې سره او په ځینو کې له ختیځې لهجې سره اړیکې او نژدېوالی لري. په دې لهجه کې (ا،ی) په (و) بدلېږي او د (راشه، خورئ) پر ځای (روشه، خورو) وایي.

۸ـ د یوسفزو لهجه: دا لهجه په اصلي ختیځه لهجه کې راځي.

۹ـ د باجوړ لهجه: د ختیځو لهجو په ډله کې ده. په دې لهجه کې (غ،ت) په (ګ،خ) بدلېږي. لکه (غوښه، غاښ، تښته) په (ګوښه، ګاښ، خښته) تلفظ کوي.

۱۰ـ د مومندو لهجه: په ختیځه لهجه کې راځي. په درونډ او ځېبر غړ سره ویل کېږي.

۱۱ـ د خوګیاڼو لهجه: په زیاتو کلمو کې له مرکزي لهجې سره اړیکې او نژدېوالی لري خو په ځینو کلماتو کې له ختیځې لهجې سره اړیکې پیدا کوي. (و) په (ی) بدلوي لکه

(غوړي) غېړي او (خولی) ته (خیله) وایي.

۱۲ـ د شینوارو لهجه: دا هم یوه فرعي لهجه ده چې په ځینو کلمو کې زیر (کسره) په زور (فتحه) بدلوي لکه (ورمېږ) ته (ورمږ) وایي.

د متن لنډيز:

ژبه هغه آوازونه دي چې انسانان يې د خپلو افکارو د ښکاره کولو په غرض د يو خاص سيستم لاندې د صوتي غړو په واسطه له خولې څخه راباسي. يا ژبه يوه ټولنيزه پديده ده چې اجتماعي مناسبات رامنځته کوي او د پوهولو راپوهولو لپاره کارول کېږي.

که ژبه يو سيستم وګڼو، نو په دغه سيستم کې ډله ييز توپيرونه د لهجې معنا لري. دا توپيرونه به يا د طبقې او يا يوې ټاکلې جغرافياوي سيمې له کبله وي. لهجه د اصلي ژبې او سيستم څخه د ځينو کلمو په تلفظ کې بېله شوې وي. دا بېلتون د قبيلو، سيمو، ښارونو، کليو، لوستو او نالوستو خلکو ترمنځ د خبرو په وخت کې څرګندېږي.

د پښتو ژبې لهجې په درې ډلو وېشل شوې دي، ختيځه، لويديځه او منځنۍ لهجه چې دا هره ډله ځانته ويونکي او ټاکلې جغرافيايي چاپېريال لري. د پښتو لهجو وېش د (ږ، ښ) د تورو پر بنسټ شوی دی. سربېره پر دغه وېش په پښتو کې ډېرې فرعي لهجې هم شته چې يو څو بېلګې يې په لوست کې ولوستل شوې. همدارنګه معياري ژبه هم له دغو لهجو څخه رامنځته کېږي او بيا د يوه هېواد په مطبوعاتو، راډيو، تلويزيون او نورو خپرونو کې کارول کېږي. د معياري ژبې د ځينو کلماتو په ټاکلو کې پوهان او د ژبې متخصصين سره په يوه ګډه ليکدود فيصله کوي او هغه بيا په ټولو خپرونو کې کارول کېږي. معياري ژبه د ليکدود سره ډېر تړاو لري چې ټولې علمي او ادبي ليکنې بايد په واحد ليکدود وي او همدارنګه په رسمي ټولنو، کنفرانسونو کې په وينا کې هم مراعات کړي.

د يوې ژبې نورې لهجې د وخت په تېرېدو سره معياري ژبه پياوړې کوي او په خپله لهجې ورو، ورو خپله بڼه له لاسه ورکوي.



## فعالیتونه

۱ـ زده کوونکي دې لوست په چوپه خوله ولولي او بیا دې لاندې پوښتنې ځواب کړي:

- ژبه څه ته وايي؟
- لهجه څه ته وايي؟
- د پښتو لهجې د کومو تورو په واسطه بېلېږي؟
- په پښتو کې کومې اصلي لهجې پېژنئ؟

۲ـ زده کوونکي دې په وار سره په خپله خوښه د پښتو په یوې لهجې خبرې وکړي.

۳ـ زده کوونکي دې د خپلې سیمې د لهجې پېژندنه په څو کرښو کې له مثالونو سره ولیکي او بیا دې خپله لیکنه په ټولګي کې واوروي.

٤ـ زده کوونکي دې په وار سره نظر ورکړي چې د ژبو زده کړه څه ګټه لري؟

٥ـ زده کوونکي دې په څو ډلو ووېشل شي او په لاندې لهجو کې دې نور مثالونه پیدا کړي.

- په وزیرۍ لهجه کې (الف) په (و) بدلېږي، مثالونه یې ووایاست؟
- د احمدزیو په لهجه کې (ژ) په (ز) او (ش) په (س) بدلېږي مثالونه یې ووایاست؟
- د ځدرانو او ځاځیو په لهجه کې (څ) په (خ) بدلېږي، مثالونه یې ووایئ.
- د باجوړ په لهجه کې (غ) په (ګ) او (ت) په (ځ) بدلېږي، مثالونه یې کوم دي؟
- د اپریدو په لهجه کې (الف) او (ی) په (و) بدلېږي، مثالونه یې کوم دي؟

یادونه: دا بدلون په ځینو کلماتو کې راځي، نه په ټولو کلماتو کې.



## کورنۍ دنده

هر زده کوونکی دې د مثالونو په څېر د خپلې سیمې لس کلمې ولیکي چې لهجوي توپیر پکې څرګند شي.

## وییپانګه

((الف))

اتل: نابغه، قهرمان، پهلوان
اتلولي: قهرماني
اتغر: اته غرونه، د کلات په جنوب کې یو ځای دی چې د هوتکیانو حکومتي اداره په کې وه.
اتوم: د یوه کیمیاوي عنصر ډېره وړه ذره چې د هستې پروتونونو او الکترونونو څخه جوړه وي او پخپله د هماغه عنصر خواص ولري.
اثر: اغېز
اجرونه: ثوابونه
احتمال: حدس او ګومان
اختناق: خپه کول، د تنفس بندول، د بیان او فکر د آزادۍ بندول
ارشاد: د سمې لارې ښودل
اژدها: ښامار
استعاره: مجازي بیان د تشبه پر بنسټ چې په هغه کې د تشبه له دوو خواو (مشبه یا مشبه به) حذف شوي وي
استغفار: توبه
اسلوب: لاره، طریقه
اشرف المخلوقات: د مخلوقاتو غوره
اطلس: یو ډول وربښمینه ټوټه
التماس: هیله، ارزو
الحاد: له دین څخه ګرځېدل، له خدایﷻ څخه انکار کول، بې دیني او کفر
انحطاط: ځوړتیا، تباهي، پستي
الم: درد
اوتر: وارخطا، پرېشان
اوجاړ: خراب، ویجاړ
اوزان: وزنونه، قالبونه (د شعر لپاره)
ایثار: قرباني
ایوادونه: هیوادونه

اټک: د اباسین سیند او هم د دې سیند پر غاړه د یو کلي نوم دی.
ابدا: تل، دایم، ښکاره کول
اروایي: روحي
اغراق: د یو چا په اړه ستاینه چې عقل یې منلی نشي.
اعتیاد: روږدي توب، عادت
اهل بیت: د پیغمبرﷺ کورنی
اودوم: چاره، علاج
الهام: هغه فکر چې ناڅاپه په ذهن کې پیدا کېږي

((ب))

باب: معمول، رایج، د کتاب یوه برخه، په باره کې
بادار: اقا، سود
بامم: پالم، روزنه
بدرقه (بدرګه): ملګرتیا، مشایعت، په میلمه پسې شاته تلل
بسیط: ساده او آسان
برهمن: د برهمایي دین لارښود
بری: فتحه، سوبه، کامیابي
بزم: د خوښۍ او مېلمستیا جشن
بصر: نظر، دید
بلاغت: سوچه وینا، روانه وینا، له معنا او مطلب څخه ډکه وینا
بها: قیمت، ارزش
بوره: زوی مړې، هغه ښځه چې زوی یې مړ وي
بولي: یادوي
بیت المال: د اسلامي حکومتونو زیرمې لکه خزانه
باري: د خدایﷻ نوم، خالق، پیدا کوونکی
بدعت: په دین کې یو نوی شی راوړل.

((پ))

پاداش: د یو کار مزد، حقوق
پانګه: زیرمه، سرمایه
پاسوال: ساتونکی، پادشاه
پالل: ساتل، روزل
پاړکی: د شعر قطعه

پاړو: جادوګر، دم کوونکی
پلاټ: طرحه، خاکه
پنځولی: تخلیق کړی، ایجاد کړی
پیاوړی: غښتلی، قوي
پېژندوی: پېژندل شوی، د نوم او نښان خاوند
پلن: قدم، پل، پلی، پیاده
پیشوا: رهبر، مقتدا، رئیس

((ت))

تبلیغ: هغه کار چې بل ته یې رسول غواړي یا بل وربانديې خبروي
تاب: قدرت، برابري، مقاومت
تاړاک: چور، لوټول
تجهیز: د وسایلو اماده کول لکه مړی په کفن کول
تجاهل: ځان په ناداني وهل
تحریک: راپارېدل، د یوه کار د سرته رسولو لپاره یا د یوه حالت ښکاره کول، بهیر، غورځنګ، لمسون
تحول: بدلون
تحت الثري: د ځمکې تل
تخیل: خیال
تداوم: دوامداره، پرله پسې
ترپله: تېښته
ترله: د تره لور
ترنم: زمزمه، د شعر ویل، آواز، نغمه
تروږمی: تیاره
تشبیه: یو شی د بل شي سره مخې کول چې ورته والی ولري
تعادل: برابري
تعبیر: معنا
تعبیرونه: معناګانې
تقوا: پرهېزګاري
تکامل: وده
تصدیق: تائیدول، شاهدي ورکول
تکذیب: دروغ یا ناسم ګڼل
تکفین: مړي ته کفن اغوستل

تلطف: مهرباني، خوش رفتاري
تم: درېدل
تمدن: پرمختګ، ترقي
تمنا: ارزو، هیله
تهذیب: پاکېدل او له عیبونو څخه اصلاح کېدل
توازن: برابري
توښه: د سفر خوراکه، اذوقه
تور: تور (رنګ) تهمت، ترېدل
تورن: تهمتي
تومن: د ایران غیر رسمي پولي واحد
تون: ځای
تیری: تجاوز
تیکی: د توري غلاف
تښتېدوني: تښتېدل، تښتېدونکي
تحصیل: حاصلول، زده کړه، درس ویل، لاسته راوړل
ترپلل: تښتېدل، ځغاستل
تسکین: آرامول، آرام کول
تقلید: پیروي، پېښې
تلفیق: د دوه یا څو څیزونو یو له بل سره ترتیب ورکول او منظم کول
تلمیح: اشاره کول، په شعر کې یوې مشهورې کیسې ته اشاره کول
تناسب: مناسب، د یو شي په اجزاوو کې هماهنګي
تمرد: مقاومت، د چا پر وړاندې درېدل

((ټ))

ټال: ځنډ، ځنډېدل
ټاټوبی: وطن، هېواد
ټبر: قوم
ټولنپوهنه: جامعه شناسي، هغه پوهنه چې د ټولنې او بشري ډلو په اړه معلومات ورکوي.

((ث))

ثنا: دعا، ستاینه، درود، حمد

((ج))

جاگیر: هغه ځمکه چې د يوه چا په ولکه کې وي
جبران: د يو تېر بد عمل د تلافی لپاره ښه کار کول
جامد: هغه جسم چې معين حجم او شکل ولري او د شکل د تغيير په وړاندې مقاومت ښرگند کړي لکه اوسپنه، تيږه
جدل: جنگ، مشاجره
جذبات: احساسات، ولولې
جرس: گينگړی، زنگوله
جروم: اوسنی گرمسير چې د قندهار په جنوب غرب کې واقع دی
جزم: محکم، استوار، نه تغييريدونکی
جگې جگې: هيله کول، کاشکې
جمال: ښکلا، ښايست
جور: ستم، ظلم کول
جمال: ښکلا، ازلي ښکلا چې د خدای ﷻ ازلي صفت دی.

((ځ))

ځواک: توان، قوت

((چ))

چپاو: حمله، هجوم
چور: تالان، لوټل، غل، غلا
چشتيه: يوه تصوفي طريقه ده
چم: کلی، کوڅه، چل

((ح))

حبيب: دوست، ملگری
حسرتونه: ارمانونه
حصار: ديوال، قلعه
حکايت: قصه، نکل
حکمت: پیژندنه، هوښياري، پند، خدايي علم
حنفي: د څلورگونو مذهبونو نه يو مذهب دی، ابو حنيفه نعمان بن ثابت ته منسوب
حيرت: حيراني

((خ))

خدنگ: تير، هغه کلك لرگی يا ونه ده چې له هغه نه نيزه، تير او د اس زين جوړوي
خروش: چيغه، کړيکه
خلق: ايجاد، پيدا کول، په وجود راوړل، د يو هنري اثر منځ ته راوړل
خلقت: پيدايښت
خودبينه: متکبر، مغرور
خودنمای: ځان ښودونکی، ريا
خول: تاج، افسر، خولۍ

((د))

د سالو وږمه: د ريگستان نسيم
دد: داړونکی حيوان
دُر: مرغلرې
دربيله: تياره
درناوی: احترام
درهمونه: د اماراتو پولي واحد، درهم جمع درهمونه
دروه: دروغ، فريب
دريځ: منبر، موقف
دم ختلی: مړ (چې ساه يې وتلی وي)
دم: ساه
دمن: د غره لمن د دښتې پراخوالی
دون: پست، ټيټ، ناڅيزه
دښن: دښمن
دښنه: د دښمن جمع يعني دښمنان
دغه بازي: فريب کول، مکر کول
دانشمند: پوهه، عالم

((ذ))

ذلت: خواري، شرمنده گي

((ر))

رېږې: ستونزې
رپي: رپېدل، لړزېدل
رحلت: کوچ، سفر، وفات
رزم: جنگ، جگړه
رکاب: فلزي حلقه ده چې د آس په زين پورې تړلې وي
رکيبی: غاب

رندي: زيرکي، آزادي، بې پروايي، هغه عمل يا چار چې د ټولنې له دود دستور څخه لرې وي.
رهبر: لاربنود، مشر، رهنما
روحيات: هغه علم چې د روح او ژوند څېړنه کوي
روش: لاره، طريقه
رومان: يو ډول ناول چې پېښې او د مينې داستانونه پکې وي
رومانتيک: داستاني، تخيلي، افسانوي
رونلی: رونړول
رويدار: مخور
ريا: تظاهر، خپل ځان خلکو ته په نيکۍ ظاهرول
رياضت: د نفس د پاکۍ او ښو اخلاقو لپاره د رنځونو زغمل
رجا: ويره، اميدواري
رديف: په يو شعر کې له قافيې وروسته د هم وزنه کلمو تکرار، چې معنا يې يو ډول وي، رديف ګڼل کېږي.
رغبت: ميل، ارزو
روحي: روح ته اړوند
روضه: مقبره، هديره، قبر

((ز))

زبون: بيچاره، ناتوان، عاجز، خوار
زعفران: ترکيبي رنګ لکه د زعفران رنګ، ژېړ نارنجي رنګ ته ورته
زل: له حق او ثواب څخه منحرف کېدل، ښوييدل
زنګاره: زنګ، د اوسپنې او فلزاتو زنګ
زنګي: زنګ وهلی، تور
زهد: عبادت کول، دنيا ترک کول
زهير: ناتوانه، کمزوری، غمجن، خوابدی
زيارنه: کوښښ، زحمت
زيب: زينت، ښکلا
زړن: زړور، شجاع، دلاور
زيب: هغه څه چې د ښکلا سبب کېږي، زېور، لياقت، مناسب

زميندار: په غور کې د يوه پخواني ځای نوم و

((ژ))

ژوبله: جګړه

((س))

ساد: سم، ربښتيا ويونکي
سالو: ميده شګه
سانسور: په رسنيو کنټرول او سخت ګيري، په اخبارونو، کتابونو، مجلو او نورو کې د ځينو شيانو حذفول
سبحان: پاک
سروپای: شال، دستيار
سرور: رهنما، سرپرست، پيشوا، د کورنۍ مشر
سرښندنې: قرباني
سخاوت: عطاء، بخشش، کرم
سعادت: نېکمرغي
سمبال: اماده
سوبه: فتح، ظفر
سور: سوري کورنۍ، د پښتنو يو خيل
سمبول: نښه
سيرت: کړه وړه، خوی عادت، لاره

((ش))

شاکر: شکر کوونکی
شفاهي: د ژبې په وسيله ويل شوی، ژبني
شفاعت: د عفې غوښتل، يا له يوه چا څخه د مرستې غوښتل
شواخون: غم، رنځ، تکليف

((ښ))

ښکلونکي: ښکلی کوونکی
ښندم: قربانوم

((ص))

صوبيدار: د مغلو د حکومت په اداري تشکيلاتو کې د والي څوکی

((ض))

ضيافت: مېلمستيا

((ط))

طاعت: بنده‌گي، فرمانبرداري
طامع: طمعه کوونکی، حریص
طیلسان: یو ډول جامه وه، چې لستوڼي یې نه لرل، لکه چپنه، چې قاضیانو او خطیبانو به پر اوږو اچوله.

((ظ))

ظلمت: تیاره، تورتم
ظلام: تیاره، تورتم

((ع))

عابد: عبادت کوونکی
عامل: سبب، وجه
عبور: تېرېدل
عدالت: برابري، نیاو، انصاف
عرفان: د خدای ﷻ پېژندنه
عشور: لسمه
عطا: بخشش، بخښل
عقیق: تور بخن زینتي کاڼی چې یمني عقیق یې ډېر مشهور دی
عنا: رنځ ایستل، د سختیو لیدل، مشقت، سختي
عنایت: مهرباني، شفقت
عنعنات: دودونه، رواجونه
عواطف: مینه، علاقه، نژدېتوب
عارف: د معرفت خاوند، پېژندونکی
عصیان: نافرماني، سرغړونه، شورش
علی الدوام: پرله پسې، دوامداره
عقبا: اخرت، هغه دنیا
عیان: ښکاره، څرګند، ظاهر

((غ))

غاصب: غصب کوونکی، څوک چې د بل څا له رضا نه په غیر د هغه حق واخلي
غبرګون: ځواب، عکس العمل
غرج او غرجستان: هغه سیمې چې د غور او هرات له شماله پیل او تر آمو پورې رسېږي، غرباً تر مرغاب او مرواالرود او شرقاً د بلخ څنډو ته رسېږي

غشی: تیر
غفور: د ګناهونو بخښونکی
غلیم: دښمن
غلبلې: چغې، نارې، سورې
غلو: مبالغه چې عقل یې نه مني
غمزه: کرشمه، د سترګو او وروځو حرکت د بل چا د پاملرنې لپاره
غنا: بډاینه، د مال زیاتېدنه
غوغا: چیغې، نارې، سورې

((ف))

فاضلان: عالمان، د فضل خاوندان
فتنه: عذاب، بیماري، د خلکو ترمنځ اختلاف
فدیه: هغه مال چې د چا د آزادۍ په غرض ورکول کېږي یا هغه مال چې د بلا د رفع لپاره ورکول کېږي
فراق: جدایي، بېلتون
فرقت: جدایي، فراق
فرهنګیالی: د فرهنګ خاوند، فرهنګپال
فصاحت: څرګنده او روانه وینا
فضله مواد: بېکاره مواد، خځلې
فضیلت: برتري، په علم کې لوړه درجه
فیض: بخشش، برکت، ډېرېدل
فیروز کوه: د سفید کوه وروستی لړۍ، چې د هرات په شمال غزني برخه کې واقع ده. د فیروز کوه په نامه یادېږي.
فوشنج: په هرات کې د یوه ځای نوم دی
فضول: بیهوده
فلک: آسمان

((ق))

قافله: کاروان، هغه ډله چې په سفر روانه وي او یا له سفره راځي
قاموس: د لغاتو کتاب
قبیله: طایفه، هغه ډله خلک چې د یو سړي اولاده وي

قضا: تقدیر، سرنوشت، د قاضي عمل او شغل، قضاوت
قطر: د عربي اماراتو یو ملک
قلندر: درویش، هغه مجرد شخص چې دنیا ته یې شا کړې وي
قضاوت: د دوه کسانو ترمنځ عدالت کول
قادر: توانمند، د توان لرونکی، د خدای ﷻ له نومونو او صفتونو څخه یو دی.
قافیه: په لغت کې وروسته ته وایي او په یو بیت کې د دوه مسرو د وروستیو کلماتو هم اهنګی ته وایي، چې په معنا کې توپیر لري.
قایم: توان مند، محکم، ولاړ

((ک))

کان: پښت، نسل
کام: ارزو، اراده، قصد
کبریا: عظمت، لویي، بزرګي
کثافات: بېکاره شیان، خځلې
کرکټرونه: د کیسې، ناول او ډرامې شخصیتونه
کروړ: محکم، سخت، کلک
کرږ: غوڅ، ژوبل، زخمي
کنایه: هغه وینا یا کلمه چې د خپلې اصلي معنا نه په غیر یعنې مدلول باندې دلالت وکړي
کنعان: په عراق کې د یوې تاریخي سیمې نوم دی
کهاله: کهول، کورنۍ
کهول: خاندان، کورنۍ
کوډې: جادو
کول: کهول، کورنۍ
کونین: دواړه جهانونه (دنیا او اخرت)
کوټ: کلا
کوټوال: کلاوال، کلا لرونکی، کلا ساتونکی
کجل: رانجه
کوټه: ناچل
کیمیا: د پخوانیو په اصطلاح هغه ماده چې د هغې پواسطه به یې مس په سرو زرو بدلول
کځ: د سیند د غاړې کلی
کویله: د یو هندي مرغه نوم دی، لکه بلبل چې ښه آواز لري
کهسار: غریزه سیمه، غرنۍ سیمه

((ګ))

ګاهې: کله
ګرداب: په سیند کې هغه ځای چې اوبه یې تاوېږي، د اوبو غولۍ
ګروه: عقیده
ګروهېدل: عقیده لرل
ګلبدن: د ګل په څېر نرم او نازک بدن
ګلرنګ: د ګل په رنګ
ګلرخسار: ګل مخی
ګلرخ: ګل مخی
ګمراه: هغه څوک چې لاره یې غلطه کړې وي
ګنج: خزانه
ګوښې: یوازې، تنها
ګروهېدل: دین، عقیده لرل
ګوهر: قیمتي کاڼی لکه الماس، زمرد، یاقوت، مرغلره

((ل))

لتاړ: ویجاړ
لرغون: قدیم، لومړنی، پخوانی
لطافت: نرمي، نازکي، ښکلا، نرمه او نیکه وینا
لمانځل: درناوی کول، لمونځ کول، عبادت، تجلیلول
لور: لورېینه، پېرزوینه، مهرباني، شفقت، رواداري
لتیر: حمله، د حملې یو بد حالت
لکزیکي: لغوي پانګه
لوني: شیندي، وربېري، پاشي

((م))

ماتم: غم، مصیبت
ماتېدوني: شکست خوړونکي
مامن: وطن، ټاټوبی
ماهیت: حقیقت، د یو شي سرشت
مایع: اوبلن

مبالغه: د چا په ستاینه کې زیاتی چې له اعتدال نه لرې وي
مبتلا: روږدی، اخته
مجازي: غیر حقیقي
محتوا: منځپانګه، مضمون
محشر: د خلکو د راټولېدو ځای، د قیامت ورځ
محکوم: تر حکم لاندې، حکم پرې شوی
مخسور: سرخرویي، سرلوړي
مدبر: تدبیر کوونکی، باتدبیره، عاقبت اندېش
مدت: وخت، زمان
مدعا: مقصد، هغه څه چې ادعا شوي وي
مدفن: قبر
مرتبې: درجې، مقامونه، موقفونه
مرثیه: ویرنه، هغه شعر چې د چا د مړینې ویر پکې کېږي.
مرصع: په جواهرو تزین شوی
مرو: د ترکمنستان په جنوب کې د یو ښار نوم دی
مرکب: ترکیب شوی، هغه کلمه چې له دوو یا څو توکو څخه جوړه وي
مزاج: طبیعت
مساوات: برابري، یو له بل سره برابرېدل
مسمومیت: زهري کېدل
مشورت: مشوره، مفاهمه
مشابه: ورته، یو ډول
مصفی: تصفیه شوی، پاک شوی، خالص، بې عیبه
مظلوم: بېچاره، ځپلی، چې ظلم پرې شوی وي
معتاد: روږدی، اخته
معتزر: عذر غوښتونکی
معصیت: ګناه، نافرماني
مقبول: قبول شوی، خوښ شوی
مکر: حیله، فریب
مل: ملګری
مکلف: ګومارل شوی، متعهد کېدل
ملحد: هغه څوک چې په خدای عقیده نه لري او یا له دین څخه اووښتی وي
ملونه: د مل جمع، ملګري
من: زړه، اراده
مناسبات: راشه درشه، اړیکې
منافقي: دوه مخي
منزه: پاک، سپېڅلی
منشاء: سرچینه
منظر کشي: د منظرونو ترسیمول
منګور: مار
منبت: قبلول
مهجور: مبتلا په هجران، لرې، تبعید شوی
مهذب: پاک او سپېڅلی، له عیبونو څخه پاک، د ښو اخلاقو خاوند
مواس: ساتونکی، محافظ
مورفولوژي: آواز پېژندنه
موعظه: پند او نصیحت
موفقیت: کامیابي، بریالیتوب، بری
مفروق: هغه عدد چې له بل عدد څخه کمېږي
مؤرخین: تاریخ لیکونکي
میرخمن: دښمن
متعلق: تړلی، متصل، یو چا یا څه شي ته منسوب
متجانس: همجنس، هم شکل، یو ډول
متناظر: ورته، یو شان
متناوب: وار په وار، یو په بل پسې
مطایبه: شوخي، هغه وینا چې شوخي او طنز پکې وي.
معیار: د اندازه کولو وسیله، سرمشق
مغلوب: شکست خوړلی، ماتې خوړلی
مناهي: د منع جمعه، منع شوي کارونه
منثور: هغه کلام چې وزن او قافیه ونه لري
مندیش: د غوریانو پایتخت، یوه ټینګه مشهوره کلا
مُل: شراب
محرقه: یو ډول ناروغي ده، چې دوامداره تبه لري.
محاوره: خبرې اترې، اصطلاح

مجازي: غیر واقعي، غیر حقیقي.
مجهول: هغه څه چې نامعلوم او نا آشنا وي
منفور: د نفرت وړ
موضوعي: چې په یوه خاصه نقطه او یا یو ځای پورې تړلې وي
منصور: کامیاب، حسین بن منصور حلاج چې د وحدت الوجود د فلسفې لوی علمبردار و.
منظوم: هغه کلام چې وزن او قافیه ولري
منعکس: انعکاس شوی، څرګند
مورفیم: د ژبې تر ټولو کوچنی معنا لرونکی واحد چې که تجزیه شي خپله معنا له لاسه ورکوي.
میرڅي: دښمن، دښمني، دښمنان
مهر: محبت، دوستي، مینه

((ن))

ناتار: تاراج، یلغار
نار: اور
نانغوتان: نااورېدونکي
ناورین: مصیبت، ماتم، غم
ناصبور: بې صبره
نتلی: زار، زبون، افسرده
نشاط: خوښي، ارزو، هیله
ندامت: پښېماني
نصرت: فتحه، سوبه
نغوره: اورېدل، اوره
نوا: آواز، نغمه
نیاو: عدالت، مساوات
نیرنګ: فریب، مکر، حیله
نصاب: ټاکلې اندازه چې زکات پرې واجبېږي، درجه، مقام
نفسي: هوا او هوس، روحي، روحاني

((و))

ورم: پند، نصیحت
وعظونه: نصیحتونه کول
ویاړ: افتخار
ویرنه: ویر، ماتم، سوګ
وبله: یو تر بله
ودنه: وده، نمو، غوړېدنه
وستاکار: د ټوپکو جوړوونکی
وکوراوه: باطل کول
وټه ییز: اقتصادي
وصف: ستاینه، توصیف
وصال: دیدن

((هـ))

هجوم: ناڅاپه حمله، یرغل
هدایت: لارښوونه
هذب: بې عیبه، صاف
هریوا: د هرات پخوانی نوم
هستونې: تخلیقات، ایجادات
هسک: آسمان، لوړ
هنریت: د هنر لرونکی
هورې: هلته
هوډ: عزم، اراده
هیجان: حیرانېدل، په احساساتو راتلل، جذباتي کېدل
هیرو: اتل، قهرمان
هزل: هر ډول غیر جدي وینا، شعر یا نثر چې غیر اخلاقي مضامین ولري او د اجتماعي ادب مخالف وي.
هوا: خواهش، نفس، هوس، میل، تمنا

((ی))

یرغ: هغه آس چې تېز رفتار کوي، اسلحه
یرغالم: یرغل کوم
یرغل: حمله، هجوم
یون: حرکت، تګ

# اخځلیکونه


۱ـ ادب پوهنه، سید محی الدین هاشمي، د اریک گرځنده کتابتونونو اداره، پېښور، ۱۳۸۱ هـ. ش. کال.
۲ـ ادبي بحثونه، گل پاچا الفت، دانش خپرندویه ټولنه، ۱۳۸۱ هـ. ش. کال
۳ـ بدیع او بیان، پوهندوی نور احمد شاکر، خپرونکی: د پوهنې وزارت د تالیف او ترجمې ریاست، ۱۳۵۵ هـ. ش. کال.
٤ـ بدیع او د پښتو شعر، اورنگزیب ارشاد، دانش خپرندویه ټولنه، ۱۳۶۹ هـ. ش. کال.
٥ـ په پښتو ادب کې د سولې انعکاس، څېړنوال محمد عارف غروال، د علومو اکاډیمي، کابل، ۱۳۸۸ هـ. ش. کال.
٦ـ پښتنې مېرمنې، عبدالرؤف بېنوا، دولتي مطبعه، ۱۳۲۳ هـ. ش. کال.
۷ـ پښتو ادب کې متل، داور خان داود، یونیورستي بک ایجنسي خیبر بازار، پېښور، ۱۹۹۰م. کال
۸ـ پښتو لنډۍ، عبدالرؤف بېنوا، دانش خپرندویه ټولنه، ۱۳۸۷ هـ. ش. کال.
۹ـ پټه خزانه، محمد هوتک، د پوهنې وزارت، د دارالتالیف ریاست، دویم جلد، کابل، دولتي مطبعه، ۱۳۳۹ هـ. ش. کال
۱۰ـ په افغانستان کې چاپېریال ته ورپېښ خطرونه، پوهنمل شیر احمد گردیوال، د افغانستان د مطالعاتو مرکز، دانش کتابتون، پېښور، ۱۳۷۸ هـ. ش. کال.
۱۱ـ پښتو گرامر، پوهاند صدیق الله رښتین، یونیورستي بک ایجنسي، پېښور، ۱۳۷۲ هـ. ش. کال.
۱۲ـ پښتو لهجې، څېړنپوه علي محمد منگل، د علومو اکاډیمي، ۱۳۸۷ هـ. ش. کال.
۱۳ـ پښتو نحوه، پوهندوی ډاکټره زرغونه رښتین زیور، د ساپي د پښتو څېړنو او پراختیا مرکز، پېښور، ۱۳۸۲ هـ. ش. کال.
۱٤ـ پښتو اصطلاحات او محاورې، محمد گل نوري، پښتو ټولنه، ۱۳۲۰ هـ. ش. کال.
۱٥ـ تاریخ ادبیات جهان، باکنر تراویک، ژباړونکی عربعلي رضایي، دویم جلد، تهران، ۱۳۸۳ هـ. ش. کال.
۱٦ـ تاریخ مرصع، افضل خان خټک، د دوست محمد کامل مومند په مقابله او سریزه، پېښور، ۱۹۷٤م. کال
۱۷ـ ځانځانی ښامار، سید بهاو الدین مجروح، خپروونکی د کلید د کتاب خپرولو اداره، دویم چاپ، ۱۳۸٥ هـ. ش. کال.
۱۸ـ د استاد الفت نثري کلیات، د اسمعیل یون په زیار، خپروونکی د اطلاعاتو او کلتور وزارت، دولتي مطبعه، ۱۳۷۰ هـ. ش. کال.
۱۹ـ د پښتو ادبیاتو تاریخ (لرغونې او منځنۍ دورې) سرمحقق زلمی هېوادمل، دانش خپرندویه ټولنه، ۱۳۷۹ هـ. ش. کال.
۲۰ـ د بدیع فن او پښتو شاعري، پوهنیار محمد ابراهیم همکار، دانش خپرندویه ټولنه، ۱۳۸۸ هـ. ش. کال.
۲۱ـ د مهدي داستاني کلیات، تدوین او سریزه د زرین انځور، د افغانستان د لیکوالو انجمن، کابل، ۱۳٦۷ هـ. ش. کال.
۲۲ـ د اشرف خان هجري دیوان، تحقیق، ترتیب او سمونه، همېش خلیل، خپروونکی پښتو اکېډیمي پېښور یونیورسټي، ۲۰۰۱م. کال
۲۳ـ د لیکوالی فن، سید محی الدین هاشمي، میرویس کتاب پلورنځی، ۱۳۸۲ هـ. ش. کال.
۲٤ـ دریای گوهر، دکتر مهدي حمیدي، دویم جلد، تهران، ۱۳٦۹ هـ. ش. کال.
۲٥ـ روهي سندرې، سلما شاهین، پښتو اکیډیمي پېښور یونیورسټي، جدون پریس، ۱۹۸٤م. کال